**لغتونه:**

حکمت– ستره پوهه– پوهه – علم

کاین – موجود

صانع– جوړوونکی

مقتدر – قدرت لرونکی

ناظم – تنظیم کوونکی

علیم – پوه

# دویم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| گڼه | سرلیکونه | موضوعگانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | زموږ گران پیغمبرﷺ | |
| ۲ | د زده کـــــړې پوهنیز مهارتي، ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د پیغمبرﷺ د ژوند په اړه به نورو ته معلومات وړاندې کړي.<br>– متن به سم او روان ولولي.<br>– د نویو کلمو معنا به زده کړي او په مناسبو جملو کې به یې وکاروي.<br>– د پیغمبرﷺ په اړه به یوه یا څو جملې له یادو ولیکي.<br>– په لوست کې به عربي، دري او پښتو کلمې بېلې کړي.<br>– پوښتنو ته به په شفاهي توگه ځوابونه ووایي.<br>– د جملو تش ځایونه به په مناسبو کلمو سره بشپړې کړي. | |
| ۳ | د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، په انفرادي توگه د موضوع په اړه خبرې دیالوگ (خبرې اترې) | |
| ۴ | د تدریس وسیلې او مرســـتندوی توکي | د کلمو لیکلي کارتونه. | |
| ۵ | د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، د څارنې ارزونه، د یاداشت کتابچه. | |
| ٦ | د زده کـــړې او تدریس فعالیتونه | سترې مه شي، حاضري اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه. | ٦ دقیقې |
| ۷ | د انگیـــــــزې رامنځته کول | – تاسو د گران پیغمبرﷺ د مبارک نامه په اوریدو څه ویلای شئ؟<br>– د حضرت پیغمبرﷺ وینا او کړو ته څه وایي؟<br>– پر کشرانو باندې د گران پیغمبر د شفقت او مهربانۍ په هکله څه پوهیږئ؟ | ۴ دقیقې |

| وخت | د زده‌کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | – متن ته په دقت غوږ نیول<br>– په چوپه خوله د متن لوستل.<br>– د حضرت محمدﷺ په هکله د خپلو معلومات زیاتول.<br>– د نویو لغتونو د معنا زده کول او په جملو کې یې کارول.<br>– متن سم او روان لوستل.<br>د متن مفهوم په خپله ژبه ویل.<br>– د نورو ورته او مشابه کلمو له یاده لیکل.<br>د پوښتنو ځواب ویلو تمرین کارول.<br>– زده‌کوونکي په وار سره د نوموړي تمرین کارول.<br>– دوه، دوه تنه دې په وار په پښتو ژبه خبرې وکړي. | – په لوړ غږ د متن لوستل<br>– د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته<br>– د حضرت محمدﷺ د ژوند او کړو وړو په هکله په لنډ ډول معلومات ورکول.<br>– د نویو لغتونو معنا کول او په جملو کې یې کارول.<br>– د متن سم لوستل.<br>– په متن کې ورته او مشابه کلمې د تختې پرمخ لیکل.<br>– پوښتنو ته په شفاهي توګه ځواب ویل.<br>– د تختې پرمخ د جملو د تشو ځایونو تمرین.<br>– زده‌کوونکي په خپلو منځونو کې په پښتو ژبه خبرو ته هڅول. |
| | – د متن د مشکلو اصلاحاتو تشریح: | د متن پوښتنو ته ځوابونه |
| | هغو کلمو ته ویل کیږي چې شکل او تلفظ یې یو ډول وي، خو په معنا کې سره توپیر ولري.لکه (پت) او (پت) لومړی پت د عزت په معنا ده او دویم پت د وړیو او پشم په معنا ده چې دواړه کلمې په شکل لیکلو او تلفظ کې یو ډول دي خو په معنا کې سره توپیر لري. | متشابه کلمې: |
| | د حضرت محمدﷺ وینا او کړو ته حدیث وایي:<br>حضرت محمدﷺ د خدایﷻ له لوري را لیږل شوی ترڅو<br>مسلمانانو ته د ښو او غوره کارونو او اخلاقو لارښوونې وکړي. | |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

## زموږ ګران پیغمبر حضرت محمدﷺ

حضرت محمدﷺ د عبدالله زوی د عبدالمطلب لمسی، د هاشم کړوسی او د مناف کودی دی.
د رسول اللهﷺ کورنۍ د ده د نیکه نوم هاشم بن عبدالمناف ته منسوبه ده یعنې پر(هاشمي) کورنۍ یادېږي. حضرت محمدﷺ د دوشنبې په سهار د ربیع الاول په (۱۲) نېټه دنیا ته سترګې وغړولې.[1] ابن سعد روایت کوي چې د رسولﷺ مور وایي: کله چې هغه (محمد رسول اللهﷺ) وزېږیده نو زما له بدن نه یو نور ووت چې د شام قصرونه یې روښانه کړل. د حضرت محمدﷺ د نېکمرغه میلاد په وخت کې ځینې خارق العاده پېښې واقع شوې چې د کسرى د قصر څوارلس کنګرې راولوېدې؛ د مجوسو آتش کده مړه شوه او ساوه بحیره وچه شوه او په شاوخوا کې یې موجودې کلیساګانې راپرېوتې. دا روایتونه بیهقي رانقل کړي دي. کله چې عبدالمطلب خبر شو، نو ډېر خوښ او خوشحاله شو. کعبې شریفې ته یې داخل کړ او نوم یې ورباندې محمدﷺ کېښود. د عربو د رواج او عادت له مخې یې په اوومه ورځ سنت کړ. د خپلې مور بي بي آمنې وروسته دویمه ښځه چې ده (مبارک) ته یې شیدې ورکړې هغه د ابولهب وینځه ثویبه ده.
د عربو د خلکو دا عادت و چې خپلو بچیو ته به یې دایې (شیدي ورکوونکې) ښځې نیولې،نو له دې عادت سره د بني سعد د کورنۍ یوه ډله ښځې مکې ته د دې لپاره راغلې وې چې ماشومان پیدا او شیدې ورکړي او له دې لارې یوه اندازه اجوره لاسته راوړي. ټولو ښځو ځانونوته ماشومان پیدا کړل. د محمد رسول الله پلار عبدالله صاحب د ده د پیدایښت نه مخکې له دې دنیا نه سترګې پټې کړې وې، نو دی یتیم و، چا ورته زړه نه ښه کاوه. خو دا نېکمرغه بچی د الله رسول او نبي د بي بي حلیمې په برخه شو او له ځان سره یې بوتلو دا افتخار بي بي حلیمې ته د ډېرو نېکمرغیو سره سره په برخه شو. د رسول اللهﷺ رضاعي وروڼه او خویندی عبارت وو:له عبدالله بن الحارث، انیسه بنت الحارث، حدافه او یا جذامه بنت الحارث چې لقب یې شیماؤ و، نوموړې به حضرت محمدﷺ په غېږ کې ګرځاوه.
حضرت محمدﷺ تر څلور کلنۍ او یا پنځه کلنۍ په بني سعد کې د مسلم شریف د روایت له مخې تر هغه وخته پاتې شو چې یوه ورځ جبرائیلعليه السلام په داسې وخت کې راغی چې محمد رسول اللهﷺ د ماشومانو سره لوبې کولې، ویې نیو، په ځمکه یې څملاوه او سینه یې ورڅیرې کړه او یوه ټوټه غوښه یې ورنه لرې کړه او ورته یې وویل چې دا ستا په وجود کې د شیطان برخه ده. زړه یې ورته د سرو زرو په طشت کې د زمزم په اوبو وویńځه، بېرته یې ورته په سینه کې کېښود. ماشومان په منډه مورته ورغلل چې محمد رسول الله ووژل شو. هغه په منډه راووته ګوري چې د محمد رسول الله رنګ الوتی او ژوندی دی.
له دې پېښې وروسته بي بي حلیمه ووېرېده او هغه یې خپلې مبارکې مور بي بي آمنې ته وسپاره. حضرت محمدﷺ شپږ کلن و، چې مور یې د خپل مېړه عبدالله صاحب قبرته مدینې ته حرکت وکړ. په دې سفر کې ورسره د دې د زړه ټوټه محمدﷺ هم ملګری و. له یوې میاشتې ځنډ وروسته یې د بېرته راتګ په وخت کې بي بي آمنه د مکې او مدینې ترمنځ ابوا نومې سیمه کې وفات شوه. حضرت محمدﷺ د شپږو کلونو و، چې د مور له سیورې، د محبت او مینې له ډکې غېږې بې برخې شو. له دې وروسته یې پالنه په مستقیم ډول د ده نیکه، عبدالمطلب په غاړه واخېسته. کله چې د محمد رسول اللهﷺ عمر اته کاله دوه میاشتې او لس ورځې شو د خپل مشفق، مهربان او زړه سوانده نیکه له سیورې نه هم بې برخې شو او عبدالمطلب هم وفات شو. له دې وروسته یې پالنه تره ابوطالب په غاړه واخېسته، رسول اللهﷺ په کوچنیوالي کې د داسې نېکو او غوره

[1] امام محمد ابو زهرة په خپل کتاب «خاتم النبیین» کې د جمهورو علماؤ په قول دې ته ترجیح ورکړې، چې دا نېټه د ربیع الاول دولسمه (۱۲) ده.

اخلاقو څښتن و، چې ټولو په امین سره پیژندلی و. رسول الله ﷺ د ځوانۍ په دوران کې څه خاصه مشغولا نــه درلــوده، خــو متواتر روایتونه وایي چې مېږې به یې څر ولې. کله چې (۲۵) کلن شو، د بي بي خدیجې رضی الله عنها مــال یــې د تجــارت لپاره شام ته یو وړ. خدیجه رضی الله عنها د محمد رسول الله ﷺ د امانت دارۍ، ښو اخلاقو، سپېڅلتیا او رښتینولۍ څخه خبــره شوه. په دې سفر کې د میسره په نوم یو غلام له حضرت محمد ﷺ سره ملګری و. هغه بي بي خدیجې رضــی الله عنهــا تــه کیسه وکړه، بي بي خدیجه رضی الله عنها دومره متاثره شوه چې حضرت محمد ﷺ ته یې د نکــاح او واده وړانــدیز وکــړ، رسول الله ﷺ هم دا وړاندیز ومانه. بي بي خدیجه رضی الله عنها د ۴۰ او حضرت محمد ﷺ د ۲۵ کلونــو و چــې واده یــې وکړ. بې له ابراهیم نه نور ټول بچیان یې له خدیجې رضی الله عنها څخه وو. د خدیجې رضی الله عنهــا پــه ژونــد حــضرت محمد ﷺ بل واده نه دی کړی. پر پیغمبرۍ له ګومارل کېدو څخه مخکې یې د هیڅ ډول باطل معبود عبادت نــه دی کــړی.

کله یې چې عمر ۴۰ کلنۍ ته نژدې شو، نو د حرا غار ته به تلو او هلته به یې د حق او باطل په اړه ســوچ او فکــر کــاوه او داسې ښه ښه خوبونه به یې لیدل چې دا د پیغمبرۍ زېری او پیلامه وه. کله چې د رسول اکرم ﷺ عمر (۴۰) کاله پــوره شــو، نو د حرا په غار کې د الله ﷻ له لوري د جبرائیل علیه السلام په واسطه د اقرآ دا سورت لومړني آیتونه «اقــرا بــا اســم ربــک..... الخلق» نازل شول. رسول اکرم ﷺ (۱۳) کاله په مکه معظمه کې د حق تبلیغ وکړ. د عربو نارواو، بیدینه رواجونــه یــې لــه مینځه یووړل. ټول یې د یو الله ﷻ عبادت ته راوبلل. شراب، قمار، زنا، لواطت، غــلا، دروغ، د نجونــو ژونــدي ښــخول، تربګنې، د بتانو عبادت او داسې نور، د بشریت او انسانیت ضد کارونه یې ناروا وګڼل. د هغو پر ضد یې عملاً مقابله شــروع کړه. رسول الله ﷺ د غوره او نېکو اخلاقو څښتن و. مسلمانان خو لاڅه کوې چې حیوانات، نباتات، آن جمــاداتو د ده پــه رسالت، پیغمبرۍ، انسانیت، حقانیت او پاکۍ باندې شاهدي ویله. رسول الله ﷺ خپله فرمایي زه د دې لپاره پیغمبر شــوی یــم چې اخلاق بشپړ کړم. د رسول الله ﷺ د لوړ سیرت او ښه صورت خاوند و.

کله چې یې خپلو ځینو نا اهلو خپلوانو د ده او د ده د حق د پیروانو ژوند په مکهٔ معظمه کې تنګ کــړ، نــو د الله ﷻ د امــر مطابق یې مدیني منورې ته هجرت وکړ. هلته یې پوره لس کاله د باطل په وړاندې جهاد پیل کړ، چې د الله حق دین یــې ټــولې عربي نړۍ ته په یوازې سره ورساوه.

رسول الله ﷺ هغه پیغمبر او د الله رسول او استازی دی چې د ټول انسانیت او بشریت لپاره رالېږل شــوی دی. کــه څــوک وغواړي چې د دنیا او آخرت ټولې نېکمرغۍ یې په نصیب شي، نو باید د هغه ﷺ نقش قدم تعقیب او پــه هغــه پــل او قــدم کېږدي. د اسلام مبارک دین او د رسول اکرم ﷺ نقش قدم او طریقه ده چې انسانان له هر رنګه بدمرغیو څخه ژغــوري، نــو ټولو ته لازمه ده چې د ژوند ټول اړخونه، ګفتار، کردار، حرکات، سکنات، خوراک، څښاک، راشه درشه او ټول هغــه څــه چې انسان او مسلمان ورسره په ژوند کې مخ کېږي، د هغه ﷺ د اوامرو او هغه څه مطابق استعمال کړي، چې محمــد رســول الله ﷺ د خدای ﷻ له لوري راوړي.

**مأخذونه:** رحیق المختوم، پښتو ژباړه، ژباړن مولوی جانباز سرفراز

## دریم لوست:

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع** | سوله او ژوند | |
| ۲ | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي، ذهنيتي موخې** | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– سوله او سوله ييز ژوند به وپېژني<br>– د سولې د ارزښت په اړه به خبرې وکړای شي.<br>– د سولې د ساتلو لپاره به هلې ځلې وکړي.<br>– له جګړې به ځانونه لرې وساتي.<br>– له زده‌کوونکو سره به د سولې او سوله ييز ژوند مينه پيدا شي.<br>– په زده‌کوونکو کې به د ليکلو او لوستلو وړتيا پيدا شي.<br>– زده‌کوونکي به وکولای شي د متن اړوند فعاليتونه ترسره کړي. | |
| ۳ | **د تدریس لارې** | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ځانګړي او ډله ييز فعاليتونه | |
| ۴ | **درسي توکي** | د سولې د جرګې يو انځور، تخته، تباشير او نور. | |
| ۵ | **د ارزونې لارې او وسيلې** | په شفاهي ډول د پوښتنو له لارې ارزونه، په ليکلي ډول د پوښتنو کولو له لارې ارزونه او د سمې ځارنې له لارې د زده‌کوونکو ارزونه– د يادداشت کتابچه. | |
| ۶ | **په ټولګي کې د ښوونکي فعاليتونه** | سلام، د احوال پوښتل، حاضرۍ اخيستل، کورنۍ دندې کتنه. | ۶ دقيقې |
| ۷ | **د انګيزې رامنځته کول** | – تاسو کله د سولې په هکله په کومه غونډه کې ګډون کړی دی؟<br>– سوله او ژوند سرليک پر توره دړه ليکل.<br>– د سولې د جرګې يو انځور په ښودلو سره د نوي لوست پيل. | ۴ دقيقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| − ښوونکی په لوړ غږ متن لولي.<br>− ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>− ښوونکی د سولې او ژوند په اړوند خبرې کوي او معلومات وړاندې کوي.<br>− د سولې د ګټو او جګړې دزیانونو په باب څرګندونې کوي.<br>− ښوونکی دوه دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته را غواړي چې دوی د سوال او ځواب په ډول د لوست په اړوند سره محاوره وکړي.<br>− ښوونکی پوښتنې کوي ا و له زده‌کوونکو سره د ځوابونو په ویلو کې مرسته کوي.<br>− ښوونکی د متن د موضوع په اړوند زده‌کوونکي هڅوي چې د ټولګي په وړاندې خبرې وکړي.<br>− ښوونکی د فعالیت نیمګړې جملې په تخته لیکي او په زده‌کوونکو یې بشپړوي.<br>− ښوونکی سپارښتنه کوي چې نوي لغتونه معنا او بیا ورته جملې جوړې کړي. | − زده‌کوونکي متن ته غوږ ږدي.<br>− زده‌کوونکي یو یو متن لولي.<br>− زده‌کوونکي د سولې او ژوند په اړوند د ښوونکی له څرګندونو څخه ګټه اخلي او خپل معلومات زیاتوي.<br>− زده‌کوونکي د سولې د ګټو او جګړې د زیانونو له یادونې څخه خپل معلومات زیاتوي. زده‌کوونکي ځوابونه ورکوی.<br>− دوه دوه تنه زده‌کوونکي د سولې او ژوند په اړه له یو بل سره محاوره کوي.<br>− زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې په زړه پورې ونډه اخلي.<br>− زده‌کوونکي په علاقمندۍ د متن د موضوع په اړوند معلومات وړاندې کوي.<br>− د زده‌کوونکوهره ډله د جملو په بشپړولو کې ونډه اخلي.<br>− زده‌کوونکي لغتونه معنا او جملې ورته جوړوي. | ۳۵<br>دقیقې |
| د متن د ستونزمنو برخو روښانول:سوله، صلح، روغه، جوړه، په معنا ده،<br>۱− هغه حالت چې جنګ یا جګړه پکې نه وي. | | |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه: | | |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

سوله د الله ﷻ یولوی نعمت او لورینه ده. د ټولنیز ژوند امن، سوکالي او پرمختګ په سولې پورې اړه لري.

داچې وایي، ژوند ډېر خوږ دی او د ټولنیز ژوند هره شیبه ډېره ارزښتمنه ده، دا یوه پرځای او منلې خبره ده. خو همدغه خوږ ژوند او دغه خوږې شېبې هغه وخت لاپسې خوږې او ګرانې شي چې ژوند په سوله او امن کې وي. په سوله کې ژوند سوکالي، خوشحالي، مینه او په زړونو کې د دوستۍ او الفت لیکې لاپسې ټینګوي.

د یوه هېواد او یوې ټولنې آبادي، خوښي، بیداري او پرمختګ هغه وخت منځ ته راځي چې د هغه هېواد او ولــس پــه اسمان کې وربانديې د سولې وریځې خپل د رحمت بارانونه واوروي.

الله ﷻ په سوره الرعد (۱۱) کې د سولې په هکله فرمایي چې ژباړه یې داده:

(بېشکه چې الله ﷻ تر هغې د یوه قوم حالت نه بدلوي، چې هغوی خپل حالت پخپله بدل نه کړي.)

یقیناً چې لوی پروردګار ټولو انسانانو ته عقل او فکر ورکړی دی چې د همدغه عقل او فکر په واسطه د ژوند چـــارې سمې کړي، لوی پروردګار انسانانو ته د سولې د ژوند کولو امر کړی دی او له نفاق څخه یې په کلکه منع کړې دي.

الله ﷻ داسې فرمایي: کله چې په یوه معامله کې ستاسو ترمنځ اختلاف راشي، نو د پرېکړې لپاره الله ﷻ ته مخه کړئ.

زموږ په سوله خوښونکي هېواد کې د ملي یووالي او له دې سره د سولې د خوښیو غږونه پورته کیږي، دغــه غږونـــه دومره خواږه او دومره په زړه پورې دي چې په ټولو زخمي او ټپي زړونو لکه د ملهمو پټۍ هسې لګیږي. زموږ د هېواد ټول قومونه او ولسونه د سولې په فضا کې ژوند کوي، د خپل هېواد د آبادۍ، پرمختګ لپاره شپې او ورځې لګیـــا دي کار کوي، چې دغه ویجاړ هېواد آباد، خپلواک، سر لوړی او د نړۍ د هېوادونو په کتار کې وشمېرل شي.

ژوند هغه وخت روښانه کیږی چې د سولې په وړانګو سره د تورو تروږمېو مخ روښانه کړي.

- د ټولنیز ژوند بڼ هغه وخت ښېرازه او سمسوریږی چې د سولې د رحمت اورښت پرې واوریږي.

  حضرت سلیمان علیه السلام د نفاق په هکله داسې وایي.:

  الله تعالی هغه خلک نه خوښوي چې د وروڼو ترمنځ د نفاق اور ته پکی (ببوزی) وهي.

  حضرت عیسیٰ علیه السلام د سولې په هکله داسې وایي:

  په دنیا کې له خلکو سره راشه درشه په آخرت کې د ژغورنې او بریالیتوب سبب ګرځي.
- حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د سولې په اړوند داسې فرمایي: په خپلو کې اړیکې مه شلوئ، کینه مه ساتئ او یو تر بلـــه سره ورونه شئ.
- حضرت عمر فاروق رضي الله عنه فرمایي: له هغو خلکو سره مشوره کوئ چې له الله ﷻ نه ویریږي.

  د خلکو ترمنځ د پرېکړو په کولو کې ډیل مه کوئ هسې نه چې انصاف خپل ارزښت له لاسه ورکړي.
- له خلکو سره ښه چلن نیمایي عقل، ښه پوښتنه، نیم علم او غوره تدبیر نیمایي اقتصاد دی.

**مأخذونه:**

خوږې خبرې لیکوال عبدالهادي ملاخیل د جرګې مجله.

## څلورم لوست:

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | د (ی) ډولونه | |
| ۲ | د زده کـــــړې پوهنیزې، مهـــارتي، ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>− د پښتو (ی) ډولونه به وپېژني.<br>− د پښتو ژبې د (ی) ګانو په اړه به معلومات ورکړي.<br>− متن به سم او روان ولولي.<br>− د نویو لغتونو معنا به زده کړي او په جملو کې به یې وکاروي.<br>− په متنونو (نظم ا و نثر) کې به (ی) ګانې په نښه او وپېژني.<br>− په لیک، لوست او محاوره کې به د (ی) ګانو په ارزښت وپوهیږي او په ورځیني ژوند کې به ترې ګټه واخلي.<br>− د متن د پای فعالیتونه به په سمه توګه ترسره کړي.<br>− نیمګړې جملې به په مناسبو کلمو سمې بشپړې کړي.<br>− د (ی) ګانو د توپیر په اړه به خبرې وکړي. | |
| ۳ | د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه،(دیالوګ) انفرادي کار، ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴ | د تدریس وســـیلې او مرستندوی توکي | د (ی) لرونکو کلمو لیکلي کارتونه. | |
| ۵ | د ارزونــــې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، د څارنې ارزونه، د یادداشت کتابچه. | |
| ٦ | د زده کړې او تدریس فعالیتونه | ستړي مه شي، حاضري اخیستل او د کورنۍ دندې کتنه. | ٦ دقیقې |
| ۷ | د انګیزې رامنځ تــه کول | − ویلای شئ چې په پښتو ژبه کې څو ډوله (ی) ګانې موجودې دي؟<br>− له تاسو څخه څوک کولای شي چې نومونړې (ی) ګانې پر تخته ولیکي؟<br>− آیا ویلی شئ چې دغه (ی) ګانې په ژبه کې څه ارزښت لري؟ | ۴ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی په لوړ غږ متن لولي.<br>– ښوونکی دې د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکـــو سره مرسته وکړي.<br>– د (ی) ګانو د ډولونو د پېژندلو او ارزښت په هکله لنډ او ګټور معلومات ورکول او په کلمو کې يـــې ښودل.<br>– له زده‌کوونکو څخه د (ی) ګانو په اړوند پوښـــتنې کول.<br>– د (ی) ګانو د کلمو د کارتونو فعالیت ترسره کول.<br>– د څو زده‌کوونکو په ذریعه د (ی) ګانو د ډولونو په هکله د ټولګي په وړاندې معلومات غوښـــتل او د هغوی هڅونه.<br>– د ځوابونو د ورکولو پـــه وخـــت کـــې لـــه هـــر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته کول.<br>– د لوست لنډيز(ی) ګانو بیانول.<br>– په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته.<br>– زده‌کوونکو ته د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه.<br>زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې سپارښتنه | – زده‌کوونکي متن ته غوږ ږدي.<br>– د کلمو له سم تلفظ سره د جملو او متن لوستل.<br>– د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیول او د معلوماتو لاسته راوړل.<br><br>– پوښتنو ته په شفاهي توګه ځواب ورکول.<br><br>– په رقابتي ډول پـــه جملـــو کـــې د هـــرې (ی) استعمالول.<br>– د څو زده‌کوونکو په خوښه د (ی) ګانو د ډولونو په هکله د څو دقیقو لپاره خبرې کول.<br><br>– پوښتنو ته سم ځوابونه ورکول.<br><br>– په ډله ییز فعالیت کې پـــه علاقمنـــدۍ ونـــډه اخیستل.<br>– په کور کې د کورنۍ سپارل شوې دندې ســـرته رسول. | ۳۵ دقیقې |
| د متن د ستونزمنو برخو روښانول:<br>غږونه په تورو سره ښودل کیږي، غږونه تلفظ کوو او اورویې، توري لیکو، وینو او لولو یې.<br>غږ لرونکي آوازونه هغه دي چې د هغو د تلفظ په وخت کې دتنفس د هوا په جریان کې کوم بندیزنه راځي. | | |
| ښوونکي ته د (ی) ګانو د ډولونو په هکله لازمي معلومات: | | |

## ښوونکي ته اضافي معلومات:

**په پښتو ژبه کې (ی) په پنځه ډوله ده:**

**الف:** لومړۍ نرمه (ی) چې پسته او نرمه ویل کېږي او دمخه توری یې زور لري، لکه: سړی، منگی، اوړی، منـــی، ژمـــی، لړگی او نور.

**ب:** څرگنده (ي) چې دمخه توری یې دروند او څرگند زېر لري لکه: دوستي، ښادي، شین، سپین، ځیر، خوشحالي ا و نور.

**ج:** زورکۍ واله یا لکۍ داره (ۍ) د مؤنثو نومونولپاره کارېږي او یوازې د کلمې په پای کې راځي لکـــه: هگـــۍ، خـــولۍ، کرکۍ، نجلۍ، نرۍ، گلالۍ او نور.

**د:** اوږده (ې) چې اوږده ویل کېږي دمخه توری یې اوږد زېر لري، لکه: منې، شیدې، کوټې، پخې، شړومبې، ډېر، مـــستې، ادې او نور.

**هـــ:** جمع امریه (ئ) چې په سر یې همزه لري او معمولاً په امریه او فعلي کلمو کې استعمالېږي، لکه ولـــولئ، وخـــورئ، کښېنئ، مه ځئ، ولیکئ، او نور.

څرنگه چې د پښتو ژبې پنځه (ی) گانې تاسو ته در وپېژندل شوې، دغه (ی) گانې د پښتو ژبـــې غږونـــه او آوازونـــه دي.

اوس به په ترتیب سره د (ی) گانو د کارولو په هکله لنډ معلومات وړاندې شي.

۱ـ نرمه (ی) دغه (ی) د نارینه نومونو او کلمو لپاره استعمالېږي، لکه: اوړی، ژمی، پسرلی، او نور.

۲ـ څرگنده (ي) د دغه (ي) لاندې دوه ټکي څنگ په څنگ ایښودل کېږي. زیاتره د جمع او د نـــسبتي نومونـــو او کلمو په پای کې استعمالېږي، لکه سړي، منگي، دوستي، ښادي، خوشحالي، خپلوي او نور.

۳ـ اوږده (ې) هغې (ې) ته وایي چې لاندې ترې دوه ټکي سر په سر راغلي وي. نوموړې (ې) لږ څه اوږده تلفـــظ کېږي او د کلمو په پای کې کارول کیږي، لکه: لاندې، باندې، جملې، ورځې، شپې، ادې، ښکلې، تاسې او نور.

۴ـ زورکۍ واله (ۍ) دغه (ۍ) د ښځینه نومونو او کلمو په پای کې ا ستعمالېږي. لکه گلالۍ، ملالۍ، هیلۍ، خـــولۍ، نرۍ، څوکۍ او نور.

۵ـ د جمع امریه (ئ) دغه (ئ) په جمع امریه فعلونو کې راځي، لکه: ولولئ، ولیکئ، وکړئ، غوږ ونیسئ او نور.

په پښتو کې د مذکرو نومونو او صفتونو د جمعې شکلونه:

۱ـ که د مفرد نوم او صفت په پای کې (نرمه یا ملینه ی) وي، نو جمع یې په دې شکلونو راځي:

الف: که په نوم او صفت کې خج وي، نو وروستۍ (نرمه ی) په معروفه یا څرگنده (ي) اوړي:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| سړی | سړي |
| کلی | کلي |
| وړی | وړي |
| تری | تري |
| ستوری | ستوري |
| غلی | غلي |

| | |
|---|---|
| سپی | سپي |
| کتونکی | کتونکي |
| چلوونکی | چلوونکي |
| شړلی | شړلي |
| ښاغلی | ښاغلي |

یادونه: مذکر فعل او فعلي رابط مفرد چې په پورتني صورت راځي جمع یې هم دغه شکل لري:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| راغلی دی | راغلي دي |
| لیکلی دی | لیکلي دي |
| وهلی دی | وهلي دي |

ب: که په نوم او صفت کې خج نه وي، نو جمع یې دوه شکله لري:

لومړی– په بې سانومونو او صفتونو کې (نرمه ی) په څرګنده (ي) اوړي:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| اغزی | اغزي |
| پټکی | پټکي |
| لښتی | لښتي |

دوهم– د ساکښو په نومونو او صفتونو کې:

۱– [2](نرمه ی) په (څرګنده ي) هم اوړي او ۲) په پای کې یې ان هم زیاتېږي. (ی) په زور، خوځېږي، یعنې د دغه شکل جمع دوه صورته لري:

| مفرد | جمع | جمع |
|---|---|---|
| زلمی | زلمي | زلمیان |
| مریی | مریي | مریان |
| لمسی | لمسي | لمسیان |
| مېړی | مېړي | مېړیان |
| بختانی | بختاني | بختانیان |
| کابلی | کابلي | کابلیان |
| ننګرهاری | ننګرهاري | ننګرهاریان |
| ساپی | ساپي | ساپیان |
| غویی | غویي | غویان |
| خور یی | خور یي | خور یان |

یادونه: په دغه شکل نسبتي صفتونه چې په پای کې یې (نی) وي هغه یوازې په (څرګنده ي) جمع کیږي.

| مفرد | جمع |
|---|---|

[2] دغسې نسبتي صفات که د انسان صفات وي، جمع کې یې دواړه صورته کارول کېږي او که د نورو شیانو صفتونه وي نو یوازې په (څرګنده ي) جمع کېږي، لکه: کابلي، ننګرهاری کې (د ښاغلي ریښتین له ګرامر څخه)

| | |
|---|---|
| کورنی | کورني |
| باندینی | باندیني |

ج: یو سېلابي مفرد نومونه چې په پای کې یې (نرمه ی) وي، نو د بدلون ورکولو په اثر (نرمه ی) په (څرگنده ي) اوړي ا و د جمع په پای کې یې (ونه) زیاتیږي:

| مفرد | تغییر شوی شکل | جمع |
|---|---|---|
| تی | تي | تیونه |
| شی | شي | شیونه |

۲- که د مفرد صفت په پای کې (څرگنده ي) وي، نو د جمع په صورت د دغه (ي) نه دمخه توري حرکت له منځه ځي دغه (ي) زور پیدا کوي او په پای کې یې (ان) زیاتیږي:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| قاضي | قاضیان |
| مفتي | مفتیان |
| غني | غنیان |
| ولي | ولیان |
| ربابي | ربابیان |
| موچي | موچیان |
| دوبي | دوبیان |

یادونه: په ځینو صفتونو کې چې د وروستي (څرگندې ي) څخه دمخه هم (زېر لرونکې ي) او تر هغې دمخه (الف) وي نوپه جمع کې یې هغه (زېر لرونکي ي) له منځه ځي:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| سودایي | سودایان |
| فدایي | فدایان |
| نایي | نایان |
| سپایي | سپایان |
| صحرایي | صحرایان |

ماخذونه:


پښتو پالنه او ژب څېړنه، لیکوال سر محقق عبدالله بختانی خدمتگار (۱۳۸۴ لمریز کال)

پښتو ژب دود، لیکوال صدیق الله رښتین

د لیکوالی فن، لیکوال سید محی الدین هاشمي

# پنځم لوست:

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| وخت | موضوعګانې | سرلیکونه | ګڼه |
|---|---|---|---|
| | غوره ویناوې | د لوست موضوع | ۱ |
| | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د غوره ویناوو په اصلي مفهوم او مطلب به وپوهیږي.<br>- د پوهانو او هوښیارانو ځینې ګټورې خبرې به په خپله ژبه ووایي.<br>- د غوره ویناوو ارزښت به بیان کړي.<br>- غوره ویناوې به په خپل ورځیني ژوند کې عملي کړي.<br>- د غوره وینا متن به سم ولولي.<br>- د غوره ویناوو په متن کې به نوې کلمې او لغتونه په نښه او په جملـــو کې وکاروي.<br>- د ځینو غوره ویناوو (متلونو) په اصلي مطلب به خبرې وکړای شي.<br>- د غوره ویناوو متن به د املا په شکل سم ولیکلای شي.<br>- ځینو پوښتنو ته به سم ځوابونه ووایي.<br>- د لوست د پای فعالیتونو ته به په خپلواک ډول ځواب وویلای شي. | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي موخې | ۲ |
| | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، په یوازې توګه خبرې کول او ډله ییز فعالیتونه | د تدریس لارې | ۳ |
| | درسي کتاب، توره تخته، تباشیر... د غوره وینا وو لیکلي کارتونه. | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | ۴ |
| | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، د څارنې ارزونه، د یادداشت کتابچه. | د ارزونې لارې او وسیلې | ۵ |
| ۶ دقیقې | ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه. | د زده کړې او تدریس فعالیتونه | ۶ |
| ۴ دقیقې | - آیا ویلی شئ غوره ویناوې څه ته وایي؟<br>- ستاسو په نظر غوره ویناوې د کومو خلکو له خوا ویل کیږي؟<br>- آیا کوم وخت مو له چا څخه کومه غوره وینا اورېدلې ده؟<br>که مو اورېدلې ده له چا څخه او چیرې؟ | د انګیزې رامنځ تـــه کول | ۷ |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| – ښوونکی په لوړ غږ متن لولي.<br>– د متن د جملو او پاراګرافونو په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته.<br>– د غوره وینااوو په اړه د لازمو معلوماتو ورکول.<br>– د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته.<br>– د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې د زده‌کوونکو هڅول.<br>– د لوست د لنډیز بیانول.<br>– په ډله ییزو فعالیتونو کې له زده‌کوونکو سره مرسته.<br>– زده‌کوونکو ته د نیمګړو جملو د بشپړولو لارښوونه. | – متن ته په پوره ځیرتیا غوږ نیول.<br>– په چوپه خوله د متن لوستل.<br>– د پاراګرافونو په لوستلو کې خپلو تېروتنو ته پاملرنه.<br>– د غوره وینا وو په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>– پوښتنو ته مناسب ځوابونه جوړول او ویل.<br>– د نویو کلمو یادول او په جملو کې یې کارول.<br>– د مخکیني نوبت له مخې د څو تنو په واسطه د موضوع په اړه خبرې کول.<br>– په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخیستل.<br>– په کور کې د کورنۍ دندې سرته رسول. | ۳۵<br>دقیقې |
| د متن پوښتنو ته ځوابونه<br>د متن د ستونزمنو برخو روښانول: | **غوره:** چاڼ شوې، انتخاب شوې خبرې<br>غوره وینااوې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم حدیث او دعالمانو او پوهانو خبر و او ویناوته وایي. | |

## ښوونکي ته اضافي معلومات:

غوره وينا، د لويانو خبرې، متلونه او نورې لنډې خبرې چې ډېره او پراخه معنا  پکې راغلې وي، د کاڼي د کرښې مثـــــال لري.

لوی خدایﷻ حضرت محمدﷺ د انساني ژوند د سوکالۍ او بشپړتيا لپاره راولېږه او د ده خوی او اخلاق يې قرآن وټاکـــه او دی يې وګوماره چې نېک اخلاق بشپړ کړي. ټول امت او بيا ټول عالم د بشريت له بد مرغۍ څخه وژغوری.

د حضرت محمدﷺ وېناوې، عمل، اخلاق، روش ته حديث او سنت پيغمبرﷺ ويل کيږي چــې د رســـول اللهﷺ د غـــوره ويناوو او مرغلرو تر ټولو غوره کتابونه (بخاری شريف او مسلم شريف دي ورپسې ابو داود، ترمذي، نسايي، ابـــن ماجـــه، مسند احمد...) او نور دي. په عالم د بشريت کې د دغو کتابونو له خبرو څخه چې ټولې د رسول اللهﷺ ويناوې دي ښــې او غوره ويناوې نشته. يو شمېر لويانو هم ښې خبرې کړې دي چې زموږ د عمل سر مشق وي. هره هغه وينا چې پـــه هغـــه کې د انسان د ژوند برخليک، سوکالي او ژوند لوری ټاکل شوی وي، غوره وينا بلل کيږي. يا هر هغه وينا چې پـــه ليـــک او لوست کې لږ خو د ډېر ښه قوي او هر اړخيز مفهوم لرونکې وي، غوره وينا ده. هره خبره چې په تول تللــې وي د زړه له تل څخه وتلې وي موږ يې د کاڼي کرښې بولو. زموږ يو شمېر لويانو په تول تللې، لنډې، خوږې، په زړه پـــورې او هـــر اړخيزې ويناوې کړې دي.

رسول اللهﷺ فرمايي: (تر ټولو ښه صدقه، ښه او غوره خبره ده.) که نوموړې وينا ته ځير شو، نو څرګنده به شي چــې دغـــه وينا ډېره لنډه، خو بشپړه او پراخه معنا پکې پرته ده او که عمل ورباندې وشي، نو انسان لـــه هـــر ډول بـــدمرغۍ څخـــه ژغوري. همدارنګه رسول اللهﷺ فرمايي: (تر ټولو ښه او غوره مسلمان هغه دی چې نور د هغه د ژبې او لاس له شـــر څخـــه په امن وي.) په همدې خبرې باندې عمل ا نسان خپل اصلي موخې ته رسوي. رسول اللهﷺ فرمايي: (ستاســـو عملونـــه پـــر ستاسو حکم او حکمرانی کوي.) که چېرې د انسان عمل ښه و، په ژوند کې به ښه ويني او که بـــد و، بـــد بـــه وينـــي. انسانان ټول يو د بل ظاهري ښې ته ګوري او باطن يې په همغه شان قياس کوي. انسانان که يو پر بـــل خواخـــوږي او زړه خوږی ونه لري، نو دوی دې د اللهﷻ د خواخوږۍ هيله ونه کړي. په دې اړه رسول اللهﷺ داسې فرمايي: (څـــوک چـــې د اللهﷻ په مخلوق رحم ونه کړي، نو اللهﷻ په هغه رحم نه کوي.) پورتنۍ خبره د پښتو ژبې لويان په خپلو خبرو کې داســـې انځوروي: خپل عمل د لارې مل، چې څه کرې هغه به ربې، مه کوه په چا چې وبه شي په تا،له همدې امله زموږ لويـــانو د ټولنې هر روا او ناروا کار او کړنې ته په ډېر غور او دقت کتلي او وروسته يې د هغه د ښو او بدو پايلو پر اړوند داسې پـــه تول تللې خبرې کړې دي چې د ژوند په بهير کې د تطبيق وړ وي.

حضرت ابوبکر صديقؓ د رسول اکرمﷺ لومړی يار داسې وايي (اوښکې د هغې ورځې په تېرېدو تويوئ چې بـــې ښـــېګڼې مو تيره کړې وي.) دا د کاڼي کرښې ته که موږ ښه ځير شو، نو د ژوند حقيقت پکې نغښتې دی.

د رسول اکرمﷺ دويم يار حضرت عمر فاروقؓ د ښځو په اړه فرمايي: «تر ايمان وروسته ستره، پيرزوينـــه نېـــک خويـــه ښځه ده»

حضرت عثمانؓ فرمايي: «توره بدن ټپي کوي او بده وينا روح.»

حضرت علي کرم الله وجهه بيا د حيا خبره کوي او وايي: «د حيا جامې واغوندئ چې ټول عيبونه مو پټ شي.»

امام ابو حنيفه (رح) د حنفي فقې بنسټ ايښوونکی فرمايي: «دښمن يو هم زيات دی او دوستان ډېر هم کم دي.»

دا څو بېلګې وې چې موږ يې يادونه وکړه. بياهم بايد يادونه وشي هره هغه وينا چې د انسانيت، بـــشريت، اســـلاميت او د خدایﷻ د ټولو مخلوقاتو د ښېګڼې، انساني ژوند لوری او اصلي حقيقت څرګندوي او انسان د ژوند په حقيقت پوهـــوي،

چې د هرچا وي غوره وينا، د کاڼي کربښه او ملغلره بلل کيږي.
يو پوه وايي:
د ټول عمر له تجربې، تحصيل او زده کړې وروسته اوس د ژوند په پای کې په دې پوه شوم چې نه پوهېږم!!
څوک چې نورو ته په درانه نظر ګوري په حقيقت کې ځان له سپکاوي څخه ژغوري.
د پښتو ژبې ځينو پخوانيو او اوسنيو شاعرانو او ليکوالانو د شعر په ژبه ډېرې په زړه پورې او له خوند څخه ډکـــې غـــوره وينا وې ويلې دي.
**د پښتو ژبې صوفي شاعر عبدالرحمن بابا څه ښه وايي:**

په دنيا کې له دنيا ګوښه کنار شه　　　سمندر غوندې په اور کې ګلعذار شه

**همدا رنګه خوشحال خان خټک داسې وايي:**

که اسمان دې د زمري په خوله کې ورکا　　　د زمري په خوله کې مه پرېږده همت

**حضرت سليمان(ع) وايي:**

- د علم زده کړه تر ټولو ښه غوره صدقه ده.
- څوک چې د نورو لارښوونکو ويناوو او نېکو مشورو ته غوږ ږدي، پوه او هوښيار بلل کيږي.
- پوه هغه دی چې په مجلس کې چوپ پاتې وي، ځکه ډېرې خبرې د خلکو د ناخوښۍ سبب کيږي او لږ تـــر لـــږه له سرې څخه داسې څه ويل کيږي چې د ګناه موجب ګرځي.

**حضرت لقمان (ع) فرمايي:**

- ملګري ته د راز خبره مه کوئ، کيدای شي سبا ستاسو دښمن شي.
- له ناپوهانو سره ډېره ناسته ولاړه مه کوئ چېرې تاسو به هم جاهلان کړي.

**امام غزالی (رح) وايي:**

- د هغه علم او پوهې په لټه کې شئ چې تر مرګ وروسته مو په آخرت کې په ښه راځي.
- کوم ملګری چې مو د درد په وخت کې په ښه رانشي، هغه تر ټولوغټ دښمن وګڼئ.
- درې خيزونه د زړه د ناولتوب سبب ګرځي، کينه، ځان ښودنه، (ريا) د ځان لوړوالی او د بل سپکاوي.
- ژبه د بدن تر ټولو نرمه او بې هډوکې برخه ده که د خبرو په مهال ښه وکارول شي، نو ښه ده، کـــه نـــه، نـــو د تاوان پر غولي به مو ودروي.

**حکيم بوعلی سينا (رح) وايي:**

- څوک چې هر وخت پر غچ اخيستلو غور کوي د هغه ټپونه همېشه زولن وي.
- بې ذکره وينا عبث، بې پنده کتل بې ګټې او بې فکره سکوت اشتباه ده.

**علامه اقبال (رح) وايي:**

- علم که په هر شکل شونی وي زده يې کړه، ځکه دا د عبادت يوه برخه ده.
- ښه او پياوړی استاد د لمر د وړانګو په څېر وي چې خپله رڼا او حرارت هرچېرې او هر چاتـــه پـــه يـــوه شـــان ورکوي.

**د پښتو ژبې نامتو شاعر خوشحال خان خټک وايي:**

- د زړه سواندو او رښتينو انسانانو مخونه د پسرلي د ګل غوټيو په څېر تاند او غوړېدلي وي او د دروغجنـــو او بـــې رحمه خلکو څېرې د خزان سيلۍ وهلې او مړ ژواندي وي.
- زه د هغه انسان په خپلواکه فکر، بې غمه زړه او روڼ تندي  ويارم چې نه زر لري او نه زمين.
- بې ځوانه خلک پر خپل نسب وياړي او مېړونه پر خپلو کارنامو او ښادنامو.

**د يونان ستر مفکر او عالم سقراط وايي:**

- مال او دولت نېکمرغي نه ده، بلکې ښيګڼه او خواخوږي د نېکمرغۍ وسيله ده.
- که نارينه سترګه ده، نو ښځه يې بېنايي ده او که نارينه ګل دی، نو ښځه يې بوی دی.
- ليک يو ساکت غږ دی او قلم د لاس ژبه
- ځان وژنه (خودکشی) تر ټولو ستره ګناه ده.

**فيثاغورث د رياضي او فلکياتو د علم پيژندونکی او نامتو يوناني فلسفي وايي:**

- څوک چې مو خپلو تېروتنو ته متوجه کوي د هغه چا نه ډېر ښه دی چې چاپلوسي يا غوړه مالي درتـــه کـــوي او د غرور پر رنځ مو اخته کوي.

**ماخذونه:**

خوږې خبرې، ليکوال عبدالهادی ملاخيل.

## شپږم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| گڼه | سرلیکونه | موضوعگانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | نېکمرغه کورنۍ | |
| ۲ | د زده کړې پوهنيزې، مهارتي، ذهنيتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د نېکمرغه کورنۍ ځانگړتیا وې به وپېژني.<br>– د کورنۍ په اړه به خبرې وکړای شي.<br>– په زده‌کوونکو کې به د خبرو کولو وړتیا رامنځته شي.<br>– د متن جملې او پاراگرافونه به سم ولولي.<br>– د نویو کلمو معنا به درک او په جملو کې وکاروي.<br>– له گډو وډو کلمو څخه به مناسبه جمله جوړه کړي.<br>– نیمگړې جملې به په مناسبو کلمو بشپړې کړي.<br>– په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا ومومي. | |
| ۳ | د تدریس مېتود | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، انفرادي کار، ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴ | درسي توکي | درسي کتاب، توره تخته، د نېکمرغه کورنۍ یو عکس یا انځور، لیکلي کارتونه. | |
| ۵ | د ارزونــــې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، د څارنې ارزونه، د یادداشت کتابچه. | |
| ۶ | په ټولگي کې | سترې مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه | ٦ دقیقې |
| ۷ | د انگیزې رامنځ تــه کول | – ویلی شئ چې کومې کورنۍ ته نېکمرغه کورنۍ ویلای شو؟<br>– د نېکمرغې کورنۍ د بریالیتوب راز په څه شي کې دی؟<br>د نېکمرغه کورنۍ په اړه د څو پوښتنو او د نیکمرغه کورنۍ د انځورونو او عکسونو د ښودلوله لارې سره په نوي لوست پیل. | ۴ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| – په مناسب غږ د متن د جملو او پاراګرافونو لوستل. | – د متن کلمو، جملو او پاراګرافونو ته په غور غوږ نیول. | ۳۵ دقیقې |
| – د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته. | | |
| – د نېکمرغه کورنۍ په اړه د لازمو معلوماتو ورکول. | – په پټه خوله لوستل. | |
| – د ځینو پېژندل شویو سوکاله کورنیومثال ورکول. | | |
| – د کورنۍ د نېکمرغه کېدو لارې چارې ښودل. | – د نېکمرغه او بد مرغه کورنیو د توپیر په اړه خبرې کول. | |
| – پوښتنو ته د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته. | – په وار سره د متن لوستل. | |
| – د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې د زده‌کوونکو هڅول. | | |
| | د نویو کلمو یادول او په جملو کې یې کارول. | |
| – د لوست د لنډیز بیانول. | – د جملو خالي ځایونه په مناسبو کلمو بشپړول. | |
| – له ډله ییز فعالیت څخه څارنه او مرسته کول. | – پوښتنو ته شفاهي ځوابونه ویل. | |
| – زده‌کوونکو ته د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه. | – په ډله ییز فعالیتونوکې په علاقمندۍ برخه اخیستل. | |
| – د نوو لغتونو معنا کول. | | |
| – د کورنۍ دندې سپارښتنه او لارښوونه | – په کورونو کې د کورنۍ دندې سرته رسول. | |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

## نېکمرغه کورنۍ

## په کورنۍ کې ژوند

نېکمرغه کورنۍباید دا لاندې بنسټيز مشخصات ولري:




لومړنی ځای چې تاسې د هغه غړي یاستئ، کورنۍ ده. په کورنۍ کې د پلار، مور، وروڼو او خویندو سره ژوند کوئ او هڅه کوئ چې د یوبل اړتیا وې لرې کړئ. د یوې کورنۍ غړي باید دغو موخو ته د رسېدو لپاره لاندې ټکي په پام کې ولري:

- په کارونو کې باید یو له بل سره مشوره وکړئ.
- کوم کار یا دنده چې په خپله اوږه اخلئ هغه په خوښۍ او سمه توګه ترسره کړئ.
- یوه کورنۍ د کارونو په سرته رسولو کې باید منظمه وي.
- په کارونو کې یو له بل سره مرسته او همکاري وکړئ.
- د ژوند له ستونزو سره باید مقاومت ولرئ.
- د کورنۍ د مشر خبرې او لارښوونې عملي کوئ.
- د یو بل د خبرو په وړاندې د پوره زغم او حوصلې خاوند واوسئ.

**نیکمرغه کورنۍ:**

- د کورنۍ د غړو د شمېر لږوالی،
- لوستي مور او پلار او دهغوی د پوهې لوړه کچه د کورنۍ نیکمرغي جوړوي.
- زده کړې ته د کوچنیانو هڅول،
- د روغتیا او کورني اقتصاد په کارونو کې یو له بل سره مرسته، پر کشرانو زړه سوی او د لویانو (درناوی) هغه ځانګړتیاوې دي چې نیکمرغه کورنۍ یې لري.

**کورنۍ زموږ په ژوند کې څه رول لري؟**

که له موږ څخه وغوښتل شي په خپل ژوند کې د هغو کسانو نومونه واخلوچې موږ یې پېژنو څه ورته وایو؟ حتماً وایو چې مور، پلار، وروڼه، خویندې او وربېرونه لومړني کسان دي چې موږ پېژندلي دي او له هغوی سره مینه او علاقه لرو. په کومې کورنۍ کې چې موږ سره ژوند کوو د هغې کورنۍ غړي یو، دغې ډلې ته کورنۍ وایي.

آیا کولای شو ووایو په یو کور کې چې یو تن ژوند کوي، کورنۍ ونوموو؟ ولې؟

زموږ په شاو خوا کې ډېرې کورنۍ ژوند کوي. هر یو زموږ په څېر پلار، مور، خویندې او وروڼه لري چې د یوې کورنۍ غړي دي. په کلیو او بانډو کې د مور، پلار، خویندو او وروڼو سر بېره د کور مشر پلار او مور وي چې د کورنۍ د غړو له خوا ورته په درنه او د قدر په سترګه لیدل کېږي. د کورنۍ د ټولو غړو له خوا د دغو مشرانو درناوی

او احترام په پام کې وي. خبرې بې منې، د کورنۍ په مشورو کې بې هیڅوک له خبرو څخه سرغړونه نه کـوي. پـه حقیقت کې دوی د کورنۍ مشران دي. همدارنګه زموږ په ښاري کورنیو کې هم دکورنۍ مشران په خپلو کورنیو کې ژوند کوي او د کورنۍ په چارو کې د پوره مسوولیتونو خاوندان دي.

په کورنیو کې زیاتره تنکي ځوانان د مور او پلار او د کورنۍ له نورو غړو سره دمیني په فضا کې ژوند کوي. په کورنۍ کې ټول غړي د کورنۍ په چارو کې ځانګړي دندې او مسوولیتونه لري. پلار چې د کورنۍ رئیس دی له کور څخه بهر د خپلو اولادونو په خاطر د نفقې د لاسته راوړلو لپاره لګیا وي، کار کوي. همدارنګه مور د خپلو ماشومانو د سالمې روزنې او پالنې په اړه او د کور په چارو بوخته وي.

د کورنۍ اولادونه هڅې کوي چې د خپلې کورنۍ په نیکمرغۍ او خوشحالۍ کې خپل مسوولیتونه په سـمه توګـه ترسـره کړي. مثلاً د کورنۍ پیغلې او ځوانان په خپل تعلیم او زده کړو کې بوخت وي. د ځینو کورنیـو مخـصوصاً ځوانـان د لوړو زده کړو لپاره بهرنیو هېوادونو ته ځي او خپلې زده کړې ترسره کوي. دخپل ذوق ښلا ښلې رشتې لولي او پـه پـای کې خپلې زده کړې پای ته رسوي. دا کار هم د کورنیو د نېکمرغیو ښه ثبوتونه دي. کومې کورنۍ کې چې ټاکلې دنـدې او مسوولیتونه شتون ولري ا و د کورنۍ ټول غړي په کې په مینه برخه اخلي. رښتیا چې داسې کورنۍ بیـا د خوشـحالۍ او نېکمرغۍ څخه برخمنې وي. په هغو کورنیو کې چې مشوره وي، خپل مسوولیتونه احساس کړي، نظم وي، یو له بل سـره د کور په چارو کې همکاري او مرسته وي، د ستونزو په وړاندې د زغم او حوصلې خاوند وي، د کور رهبـري سـالمه او سمه وي، د کورنۍ د ځینو وړو خبرو او لانجو په وړاندې تیرېدنه وي، نو په یقین ویـلای شـو چـې نومـوړې کـورنۍ خوشحاله او نېکمرغه کورنۍ ده. داسې کورنۍ هم ځان او هم نورو ته د خدمت وړ ګرځي. نېکمرغه کورنۍ هغه کـورنۍ ده چې نوموړي ښېګڼې او صفتونه پکې موجود وي. سمه او سالمه کورنۍ هم ځان او هم نورو خلکو ته دخدمت وړ وي.

## د یوې کورنۍ غړي څه دندې لري؟

د انسان بدن او د هر بل ژوندي موجود بدن د بېلابېلو غړو له مجموعې څخه جوړ شوی دی. په داسې حـال کـې چـې لوی خدایﷻ د انسان او د نورو ژوندیو موجوداتو د بدن هر غړي د ځانګړو دندو د ترسره کولو لپاره پیدا کـړی دی. د بدن غړي نشي کولای چې د بل غړي دندې ترسره کړي. په عین حال کې د کورنۍ غړي یو بل ته اړتیا او له یو بل سـره اړیکې لري او یو واحد جوړوي.

ستاسو په نظر د بدن د غړو ارتباط یو له بل سره کومې مهمې نتیجې له ځان سره لري؟

دې نتیجو ته د رسېدو لپاره د کورنۍ هر غړی څه دندې لري؟

تاسې په خپل کور کې کوم کارونه تر سره کوئ؟

ځواب: د کورنۍ ټول غړي ځانګړې او مشخصې دندې لري، هر یو غواړي چې خپل مسوولیتونه په سـمه توګـه ترسـره کړي. موږ چې په خپل کور کې ژوند کوو، د کور هر غړی خپلې ځانګړي دندې او مسؤولیتونه لري مثلاً پلار د کـورنۍ مشر، له کور څخه بهر د اولادونو د نفقې د پیدا کولو، د خوړو او پوښاک مسؤولیتونه پر غاړه لري. مور د کور په چـارو او همدارنګه د ماشومانو په روزنه او پالنه کې بوخته وي، ځوانان او تنکي ځوانان خپلې زده کړې تر سره کـوي او د زده کړو تر څنګ د کور په چارو کې په علاقمندۍ سره برخه اخلي.

په یوې کورنۍ کې باید د ورځې بېلابېل کارونه سرته ورسیږي. د کورنۍ ټول غړي کولی شي چې د کـور پـه ودانـۍ او هوساینې کې په بېلابېلو کارونو کې یو له بل سره همکاري وکړي: د مثال په توګه د سهار د چای خوړلو لپـاره تیـاری او نور.

# اووم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| وخت | موضوعګانې | سرلیکونه | ګڼه |
|---|---|---|---|
| | خپلواکي | د لوست موضوع | ۱ |
| | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د خپلواکۍ په مفهوم به وپوهېږي.<br>- د خپلواکۍ د لوست په مطلب به خبرې وکړي.<br>- په زده‌کوونکو کې به د خپلواکۍ احساس او روحیه پیاوړې شي.<br>- متن (شعر) به سم او روان ولوستلای شي.<br>- پوښتنو ته به مناسب ځوابونه وویلای شي.<br>- نوي لغتونه به معنا او په جملو کې وکاروي.<br>- په متن کې به بېلابېلې (ی) ګانې وپېژني.<br>- په پښتو ژبه به خبرې اترې وکولای شي.<br>- د لوست د پای فعالیتونه به په خپلواکه توګه سرته ورسولای شي. | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي موخې | ۲ |
| | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، او ډله ییز فعالیتونه | د تدریس مېتود | ۳ |
| | درسي کتاب، توره تخته، د نوو لغتونو لیکلي کارتونه، د خپلواکۍ یو په زړه پورې انځور یا عکس. | درسي توکي | ۴ |
| | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، د څارنې ارزونه، د یادداشت کتابچه. | د ارزونـــــې لارې او وسیلې | ۵ |
| ۶ دقیقې | سترې مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه. | د زده کړې او تدریس فعالیتونه | ٦ |
| ۴ دقیقې | - ستاسو په فکر خپلواکي یعنې څه؟<br>- خپلواک ژوند څه ګټې لري؟<br>- د خپلواک او نا خپلواک ژوند توپیرونه څه دي؟ | د انګیزې رامنځ ته کول | ۷ |

| وخت | د زده‌کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | – شعرته په دقت سره غوږ نیول.<br>– شعر په سم ډول لوستل.<br>– د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیول.<br>– په سوال او ځواب کې په وار سره د زده‌کوونکي برخه اخیستل.<br>– په ډله ییزو فعالیتونو کې فعاله ونډه اخیستل.<br>– په دوه کسیزه توګه د محاورې په فعالیت کې ونډه اخېستل.<br>– زده‌کوونکي په ځانګړې توګه د (ی) لرونکو کلمو فعالیتونه سرته رسوي.<br>– د نویو لغتونو معنا لیکل او په جملو کې کارول.<br>– په کورونو کې د کورنۍ دندې سرته رسول. | – په مناسب غږ د متن (شعر) لوستل.<br>– د شعر په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته.<br>– د خپلواکۍ او د شعر د مطلب په اړه د لازمو معلوماتو وړاندې کول.<br>– د ځوابونو په ویلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کول.<br>– د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې د زده‌کوونکو هڅول.<br>– د لوست (شعر) لنډیز بیانول.<br>– زده‌کوونکي د محاورې د پوښتنو او ځوابونو لپاره هڅول.<br>– د (ی) لرونکو کلمو کارونه په مشق او تمرین کې.<br>– پر تخته باندې د نویو کلمو لیکل.<br>– د کورنۍ دندې په اړه معلومات ورکول. |
| | د متن د مشکلو اصطلاحاتو تشریح.<br>خپلواک ژوند: هغه ژوند دی چې د یوه هېواد وګړي انساني ژوند ولري. د تعلیم او زده کړې حق ولري، د بیان حق ولري، د کسب او کار او نور... آزاد ولس دخپلواک ژوند خاوند وي د بل چا تر اسارت لاندې نه وي.<br>نا خپلواک ژوند: د اسارت او مریبتوب ژوند دی. په نا خپلواکه ژوند کې انسانان د هېڅ ډول آزادۍ څخه برخمن نه وي. | د متن پوښتنو ته ځوابونه |
| | | د متن د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه: |

## ښوونکي ته اضافي معلومات:

## خپلواکي:

خپلواکي یا آزادي د لوی خدایﷻ یو لوی نعمت دی.

ټول انسانان په نړۍ کې د ژوند کولو حق لري. دهر هېواد خلک، نارینه دي، که ښځه، ځوان دی، که زوړ، حق لري چې په خپلواکه توګه ژوند وکړي. ځکه چې خپلواکي د انسانانو یو طبیعي حق دی. انسانان څه چې د څارویو او الوتونکو مرغانو هم حق دی. که چېرې یو الوتونکی مرغه په قفس کې واچوو، څرګنده ده چې هغه به له الوتلو څخه بې بر خې وي. که هرڅومره ښه خواړه او اوبه ورته ورکړو، هغه به خوشحاله نه وي، ځکه چې هغه مو د آزادۍ له طبیعي نعمت څخه بې برخې کړی دی.

د بشر د حقونو نړیوالې اعلامیې له مخې ټول وګړي خپلواک دنیا ته راځي چې د حقونو له پلوه یو له بل سره برابر دي. عقل او وجدان لري، یو له بل سره باید د ورورولۍ په روحیې چلند وکړي.

همدارنګه د افغانستان په اساسي قانون کې چې په ۱۳۸۲ لمریز کال کې تصویب شوی دی، آزادي یا خپلواکي د انسان یو طبیعي حق ګڼلی دی او هر ډول تبعیض (توپیر) یې منع کړی دی.

آزادي د انسان یو طبیعي حق دی. له دغه ستر نعمت څخه چې خدایﷻ موږ ته راکړی دی، باید د اسلام د سپیڅلي دین د ارشاداتو او لارښوونو په پام کې نیولو سره سمه او په زړه پورې ګټه واخلو: زموږ د هېواد ټول وګړي په تېره بیا پېغلې او ځوانان له خپلواک ژوند څخه پوره ګټه واخلي، تعلیم او زده کړې وکړي، له نورو سره هم په ښوونه کې مرسته وکړي، آزاد مشروع کسب او کار ځانته غوره کړي.

دا ټولې څرګندونې باید داساسي قانون په چوکاټ کې وي. انسان باید له خپلواکۍ څخه سمه او مثبته ګټه واخلي. داسې کار و نه کړي چې هم یې د ځان او کورنۍ په زیان تمام شي او هم د ټولنې په زیان.

د اسلامي قانون په رڼا کې د ژوندانه لپاره دوې بنسټیزې خبرې په پام کې نیول شوي دي:

څه چې د ځان لپاره خوښوې هغه د خپل ورور لپاره هم خوښوه، بل دا چې په خپله هم ښه ژوند وکړه او نورو ته هم د ژوند کولو حق ورکړه.

د بشري نړۍ تر ټولو نظامونو او واکمنیو ښه نظام هغه دی چې په بشپړ عدالت، برابرۍ، دموکراسۍ او په انساني او اسلامي زړه سوي او خواخوږۍ ولاړ وي.

لنډه دا چې آزادي انساني ژوند دی. آزادي او خپلواکي له پاچاهۍ څخه هم غوره ده. خپلواک هېواد د خپلواک ژوند خاوند وي. مادي او معنوي پرمختګونو ته یې لاره خلاصه وي. آزاد او خپلواک هېواد د زیار او هڅو په وسیله ډېر ژر د نېکمرغۍ او آبادۍ خوا ته رسیږي. برعکس ناخپلواک او د غلامۍ ژوند انساني ژوند نه دی، ناخپلواک ژوند اسارت او بد مرغي ده او ناخپلواکه هېواد آرام او سوکاله ژوند ته نشي رسېدای.

خوشحال خټک وایي:

آزادي تر پادشاهیه لا تېری کا

چې د بل تر حکم لاندې شي زندان شي

## اتم لوست:

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرليکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع** | ناروغ او ډاکټر (خبرې اترې) | |
| ۲ | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي، ذهنيتي موخې** | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د روغتيا په ارزښت به پوه شي.<br>– د روغتيا ساتنې په هکله به معلومات ورکړای شي.<br>– متن به سم او روان ولولي.<br>– په پښتو کې به د ناروغيو نومونه زده کړي.<br>– پښتو ژبه به د خبرو اترو له لارې زده کړي.<br>– يو پښتون ډاکټر ته به دخپلې ناروغۍ بيان په پښتو ژبه وکړای شي.<br>– د متن د پای فعاليتونه به په سمه توګه په ډله ييز او يوازې توګه سرته ورسوي. | |
| ۳ | **د تدريس مېتود** | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، محاوره. | |
| ۴ | **د تدريس وسيلې او مرستندوی توکی** | د مفرد اوجمع کلمو ليکلي کار تونه. | |
| ۵ | **د ارزونې لارې او وسيلې** | شفاهي ارزونه، ليکلې ارزونه، د څارنې ارزونه او د يادداشت کتابچه. | |
| ٦ | **د زده کړې او تدريس فعاليتونه** | سترې مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه. | ٦ دقيقې |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول** | – د ناروغ او ډاکټر سرليک په تخته ليکل.<br>– د ډاکټر د دندې او ارزښت په اړه د څو پوښتنو په کولو سره په نوی لوست پيل. | ۴ دقيقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – د متن لوستل.<br>– د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته.<br>– د روغتیا د ارزښت په اړه معلومات ورکول.<br>– د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته کول.<br>– په دوه کسیزه توګه د محاورې د پوښتنو او ځوابونو په توګه په ټولګي کې پر زده‌کوونکو فعالیتونه ترسره کول.<br>– له مفرد نوم څخه د جمع نوم جوړول او د نوو کلمو معنا کول.<br>– د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې د زده‌کوونکو هڅول.<br>– د لوست د لنډیز بیانول.<br>– د نارینه او ښځینه نومونو د مفرد او جمع کلمو د توپیر په اړه معلومات.<br>– زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې د سرته رسولو لارښوونه.<br>– د مفردو نومونو د کارتونو له مخې په زده‌کوونکو باندې د جمع کلمې جوړول. | – متن ته په دقت غوږ نیول.<br>– په لوستلو کې د کلمو سم تلفظ او لوستل.<br>– د روغتیا او ارزښت په اړه د خپلو معلوماتو زیاتول او دخپلو معلوماتو بیانول.<br>– په شفاهي توګه پوښتنو ته ځواب ویل.<br>– په پښتو ژبه دخپلې ناروغۍ بیانول.<br>– په دوه کسیزه توګه په محاوره کې برخه اخیستل.<br>– له درملتون څخه د درملو په پیرو دلو پوهېدل.<br>– د نوو لغتونو یادول او په جملو کې کارول.<br>– په وینا کې په علاقمندۍ سره ونډه اخیستل.<br>– په دوه کسیزه توګه د نارینه، ښځینه نومونو د مفرد او جمع کلمو مشق او تمرین.<br>– په کورونو کې د کورنۍ دندې سرته رسول. | ۳۵ دقیقې |
| د متن پوښتنو ته ځوابونه | ستاسو په اند د ناروغۍ په وخت کې باید څه وکړو؟<br>د ناروغۍ په وخت کې باید سمدلاسه ډاکټر ته ورشو. د ډاکټر لارښوونې په پام کې ونیسو، او درمل په خپل وخت سره وخورو. | |
| د متن د مشکلو اصطلاحاتو تشریح: | روغتیا شتمني ده یعنې څه؟<br>معنا داچې روغتیا د انسان لپاره د شتمنۍ غوندې ارزښت لري. څنګه چې سړی په پیسو کولای شي د اړتیا وړ هر څه تر لاسه کړي، همدارنګه روغ او رمټ سړی کولای شي کار او فعالیت وکړي. روغ سړی خواړه او څښاک کولای شي، سپورت او نور کارونه په سمه توګه سرته رسولای شي، نو وایو چې روغتیا شتمني ده. | |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

## ناروغ او ډاکټر (خبرې اترې)

ښاغلی ښوونکي، زموږ د دې درس اصلي موخه او هدف دادی چې پښتو ژبې زده‌کوونکي وکولای شي چې په پښتو ژبه خبرې اترې وکړي او په ورځيني ژوند کې پرې خپل مشکلات حل کړي. پښتو او دري زموږ د ګران هېواد افغانستان رسمي ژبې دي، لازمه ده چې د دې هېواد هر وګړی په تېره بیا زده‌کوونکي په دواړو ژبو لیک او لوست وکړای شي.
زموږ د دواړو ژبو زده‌کوونکي په دواړو ژبو سم ګړیدای نشي. لازمه ده چې موږ زده‌کوونکي دې ته وهڅوو چې پښتو ژبه زده کړي.
ښاغلی ښوونکی دې کوښښ وکړي چې د پښتو په هر درسي ساعت کې په زده‌کوونکو باندې محاوره (خبرې اترې، سوال او ځواب) وکاروي چې زده‌کوونکي چې په ټولګي کې د پښتو ژبې په ساعت کې په پښتو ژبه خبرې وکړي او هم دې د پښتو ژبې له ضمیرونو، کلمو، نومونو، جمع، مفرد، مذکر، او مؤنث څخه په خبرو اترو کې استفاده وشي.
زده‌کوونکي دې پوه شي چې په جمع، مفرد، مؤنث، مذکر، حاضر، غایب د لومړي، دویم او دریم شخص لپاره څنګه یو له بل څخه پوښتنه وشي. په پښتو ژبه کې د نارینه او ښځینه د نوم حالتونه څنګه تغیر خوري او څه توپیر لري. کوښښ دې وشي چې په خبرو اترو کې د پښتو ژبې خاص توري ډېر وکارول شي، یو له بل څخه پوښتنه وشي چې په پښتو ژبه دې او هغه شي ته څه وایي، د څه لپاره کارول کیږي؟
د ژبې په وسیله خپل ورځیني کارونه او ستونزې هوارو.
د ژبې په وسیله پوهې او اطلاعات تر لاسه کوو. همدا راز که د چا یوه ژبه زده وي، یو تن دی، که دوه ژبې یې زده وي دوه تنه دي او که درې یې زده وي، نو درې تنه دي او نور.
که چېرې زموږ څو ژبې زده وي او پرې خبرې اترې وکړای شو، نو په ورځیني ژوند کې به له هیڅ ډول ستونزو سره مخامخ نشو او که چېرې له کومې ستونزې سره مخامخ کیږو، کولی شو چې د ژبې په وسیله یې حل کړو.
زده‌کوونکي دې په ډله ییزه بڼه یو له بل سره په خاصو او ځانګړو موضوعګانو لکه له ډاکټر سره خبرې اترې، هوټل ته تلل او هلته ډوډۍ خوړل، بازار کې خبرې اترې، یو له بل نه د کورنۍ په هکله معلومات. ښاغلی ښوونکی دې کوښښ وکړي چې ډېرې محاورې وکاروي، ترڅو زده‌کوونکي په دې وتوانیږي چې په خپلو کې په پښتو ژبه خبرې وکړي.
د اتم لوست محاوره د مثال په ډول په زده‌کوونکو په دوه کسیزه ډول د ټولګي په وړاندې په عملي توګه ترسره کړئ او داسې ډېرې نورې محاورې هم پرې مشق او تمرین کړئ چې زده‌کوونکي په پښتو ژبه سمې او روانې خبرې وکړي.

## نهم لوست:

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | زده کړه | |
| ۲ | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د زده کړې لنډه تعریف وکړای شي.<br>– د زده کړې په موضوع او ارزښت باندې خبرې وکړای شي.<br>– د پوهې او معلوماتو له حاصلولو څخه خوښ او په ورځیني ژوند کې تــرې ګټه واخلي.<br>– د زده کړې په اړه به په پښتو ژبه یو څه وویلای شي.<br>– پښتو جملې او متنونه به روان ولوستلای شي.<br>– د زده کړې د موضوع په اړه به څو کرښې ولیکلای شي.<br>– د متن د وروستۍ برخې فعالیتونه به په یوازې توګه سرته ورسولای شي. | |
| ۳ | د تدریس مېتود | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، انفرادي کار، ډله ییز فعالیتونه. | |
| ۴ | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | د کلمو لیکلي کارتونه. | |
| ۵ | د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، د څارنې ارزونه، د یادداشت کتابچه. | |
| ٦ | د زده کــړې او تدریس فعالیتونه | ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه. | ٦ دقیقې |
| ۷ | د انګېزې رامنځته کول. | – د زده کړې سرلیک پر تخته لیکل.<br>– د زده کړې د ارزښت په هکله یوڅو پوښتنې کول. | ۴ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – په لوړ غږ د متن لوستل.<br>– د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته.<br>– د زده کړې د موضوع او ارزښت په هکله لنډ او ګټور معلومات ورکول.<br>– له زده‌کوونکو څخه د زده کړې په اړوند پوښتنې کول.<br>– پر تخته باندې د نیمګړو جملو لیکل.<br>– د څو زده‌کوونکو په ذریعه د زده کړې په هکله د ټولګي په مخ کې معلومات غوښتل او د هغوی هڅول.<br>– د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته.<br>– د لوست د لنډیز بیانول.<br>– په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته.<br>– زده‌کوونکو ته د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه. | – متن ته په ځیرتیا سره غوږ نیول.<br>– د کلمو له سم تلفظ سره د جملو او متن لوستل.<br>– د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیول او د معلوماتو لاسته راوړل.<br>– پوښتنو ته په شفاهي توګه ځوابونه ورکول.<br>– په رقابتي ډول د نیمګړو جملو بشپړول.<br>– د څو زده‌کوونکو په خوښه د زده کړې په هکله د ټولګي په وړاندې د څو دقیقو لپاره خبرې کول.<br>– پوښتنو ته سم ځوابونه ویل.<br>– په ډله ییز فعالیت کې په علاقمندۍ سره فعاله ونډه اخیستل.<br>– په کور کې د کورنۍ سپارل شوې دندې سرته رسول. | ۳۵ دقیقې |
| د متن پوښتنو ته ځوابونه | **د متن د مشکلو اصطلاحاتو تشریح:**<br>ناپوهي توره بلا ده: د دې خبرې معنا دا ده که چېرې انسان علم او پوهه تر لاسه نه کړي، په ژوند کې به له هر راز ستونزو او کړاوونو سره مخامخ وي. همدا ستونزې او کړاوونه د تورې بلا په څېر معنا لري. ان تر دې چې کېدای شي د ناپوهي په وجه خپل ابدي ژوند ته هم زيان ورسوي.<br>ناپوهي تور تم دی: د دې خبرې معنا دا ده که چيرې يو څوک پوهه او علم تر لاسه نه کړي. نو ژوند به يې داسې معنا ولري، لکه: يو څوک چې په تورتم او تياره کې وي او لاره نه وينی او که چېرې پوهه ولري نو ټول ژوند به يې، لکه: د يوې ډيوې په شان روښانه او ځلانده وي، ځکه نو ناپوهي تورتم دی يا په دې معنا، لکه: يو څوک چې په تورتم کې بې څراغه روان وي او خپله لاره سمه نشي ليدلای او د لارې په لوړو او ژورو کې به په ډېرو ستونزو کې وي او هغه څوک چې پوهه ولري داسې به وي لکه چې په لاس کې يې څراغ وي هغه هېڅ ډول ستونزې سره نه مخ کيږي او تل به ورته د ژوند هره لاره روښانه وي.<br>**زده کړه:**<br>زده کړه له پرله پسې او منظم بهير څخه عبارت ده چې هدف يې له جسماني، سايکولوژيکي، اخلاقي، او ټولنيزې ودې او پرمختيا سره مرسته کول دي.<br>موږ ولې زده کړه کوو؟ د دې لپاره چې لومړی ځان او بيا جهان وپيژنو، هوسا ژوند ولرو، له حقايقو څخه ځان خبر کړو. د ښو او بدو توپير وکړو، خپل ځان او ټولنې ته په زړه پورې خدمت وکړو چې نېکمرغه او خوشحاله واوسو. | |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

## د زده کړې عملیې:

**د زده کړې موضوع او اهمیت:**

د انسان زده کړه هغه ډول فعالیت دی چې موخه یې د انساني تجربو ترلاسه کول دي. یا په بله ژبه زده کـړه د داسـې مطلوبې، پوهې، مهارتونو او عادتونو تر لاسه کول دي چې انسان د خپلواک ژوند، لپاره چمتو کوي.یا زده کړه له پرلــه پسې او منظم بهیر څخه عبارت چې هدف یې له جسماني،(۱) سایکولوژې، اخلاقي او ټولنیزې ودې او پرمختیـا سـره مرسته کول دي.

هغه انسان چې غواړي د ژوند له حقایقو سره بلد شي، خپل چاپېریال وپېژني او ور څخه ګټه واخلـې، نـو بایـد خپـل چاپېریال تر خپل اغېزې لاندې راولي، خپل ځان او جهان وپېژني چې دا ټول د زده کړې له برکته کېدای شي.

ماشوم له پیدایښت څخه یو محدود شمېر شرطي ارثي انعکاسات لري، خو په کار دي چې نـور بنـستیز مـسایل لـه چاپېریال څخه زده کړي. د انسان جسمي وده د ارثي عواملو تر اغېزو لاندې وي، له دې امله د چاپېریـــال اغېـــزې د انسان په بڼه او جوړښت کې د یادونې وړ اغېزه نه لري، خو زده کړه د چاپېریال د عواملو تر اغېزو لاندې وي. سره لـه دې چې د زده کړې استعداد هم یو څه ارثي اړخ لري، خو د چاپېریال د عواملو په پای کې راغـــوړېږي او ځرګنـــدېږي، یعنې کله چې د انسان نطفه جوړه شوه د هغه په جسماني وده کې بدلون راوستل ممکن نه دي. کوم جوړښـــت چـــې د ده د جنیټیکي وراثت په عواملو کې ټاکل شوی وي په هماغه بڼه منځ ته راځي، خو انسان په لړو هڅو سره د زده کـــړې عوامل په خپله برابرولای شي او د همدې زده کړې په پای کې د انسان سلوک ته لوری ټاکلی شـــي. (مـــان، ۱۳۶۸: ۱۷۵ – ۲۲۱ مخونه).

په دې خبرې پوهېدل په کار دي زده کړه تر یوې زیاتې اندازې پورې په هغو عواملو پورې اړه لري چې انسان پـــه خپـــل چاپېریال کې له هغو سره متقابلې اړیکې لري. دا موږ ته وسه راکوي چې د زده کړې عملیه په ځیر سره وڅېړو.

زده کړه داسې عملیه نه ده چې په ناڅاپي توګه ترسره شي بلکې پکې یو شمېر داسې عملیې شاملې دي چـــې د لیـــدو وړ شرایطو لاندې ترسره کېږي. دا شرایط تغیر منونکي او د کنترول وړ دي. تر کومو شرایطو لاندې چې زده کړه ترســـره کېږي، ښایي په روښانو او ځرګندو الفاظو تشریح شي. همدا راز ښایي هغه بدلونونه چې د زده کړې د عملیو په تطبیـــق د وګړو په سلوک کې منځ ته راځي، وټاکل شي او د هغه څه په باب چې زده شوي وي نتیجه ګیري وشي.

**د زده کړې د عملیې میکانېزم:**

زده کړه په حقیقت کې د یوه هڅوونکي په وړاندې د یوه ژوندي موجود ځواب دی. زده کړه له بهرنۍ هڅـــونې پرتـــه چې پر جسمي غړو باندې اثر غورځوي نشي، ترسره کیدای. دزده کړې په عملیه کې ښوونکي ته په کـــار دي چـــې د حواسو خاصیت وپېژني او د هغو د ښو فعالولو طریقې زده کړي. د زده کړې لپاره د ارزښت وړ بله موضـــوع پاملرنـــه ده، ځکه که د زده‌کوونکو حواسو ډېره وده هم کړې وي، خو چې موضوع ته یې پام نه وي، څه به یې ذهن ته لار ونـــه مومي. له همدې امله د سایکولوژې ځینو پوهانو پاملرنه (توجه) د زده کړې لپاره کړکۍ بللې ده. که توجه فعاله نـــه وي، لکه چې د ذهن کړکۍ یا دروازه تړلې وي، هر هغه څه چې زموږ ذهن ته لار مومي، لازمه ده چې هلته وساتل شـــي چـــې

---

۱- سایکولوژي: هغه علم او پوهه ده چې د ژوندیو موجوداتو په تېره بیا د انسان سلوک، څېړي.

میراثي له مړي څخه چې څه شی وارث ته پاتې او ورسیږي، میراث بلل کېږي.

جنیټکي: عوامل له یوه نسل څخه بل نسل ته د جسمي او رواني خصوصیاتو انتقال ته جنېټکی عوامل وایي.

د اړتیا په وخت کې په یاد راوستل شي او ورڅخه کار واخیستل شي. همدغه د حافظې دنده ده. په دې لړ کې ښوونکو ته د بلې معرفتي عملیې پېژندل په کار دي چې هغه حافظه ده. له حافظې پرته ځوک د تېر ژوند له تجربو څخه کار نشي اخیستلای او د راتلونکې لپاره پلان نشي جوړولای.
له دې ټولو څخه ډېره لوړه معرفتي عملیه تفکر دی چې ټولې عالي او ذهني عملیې، لکه: تجزیه کول، ترکیبول، تعمیمول، تحلیلول، ارزیابي کول، کشفول او وړاندوینې (پېشبیني) ترسره کوي. په تفکر سره هغه واقعیتونه چې مخامخ لاس ته نشي راتلای، ترسره کیږي. دلته د لا وضاحت لپاره د پورتنیو یادونو معرفتي عملیو ځانګړې برخې تشریح کوو.
احساس:
احساس د شیانو او موضوعګانو د بېلابېلو خواصو انعکاس دی چې زموږ پر حسي غړو اغېزه کوي. هر هغه څه چې زموږ پر حسي غړو اثر غورځوي، پاروونکي ګڼل کېږي، نو زده کړه پر ځینو غړو باندې د بهرنیو پاروونکو پرته نشي کېدای. همدا راز زده کړه په عصبي جوړښت پورې هم تړلې ده. د ماغزو کار ټکس (د لوی دماغ بهرنۍ برخه) د مرکزي اعصابو پیچلی جوړښت لري چې ځانګړې دندې ترسره کوي.
په زده کړه کې د حواسو ارزښت:
د زده کړې لپاره هر یو حس ځانګړې دنده لري، نو په زده کړه کې به دا ډېر اهمیت ولری چې ټول حواس په کار واچول شي. یعنې که یوه موضوع هم د لیدو او هم د لمس کولو او هم د نورو مشخصاتو له اړخه وڅېړل شي، نو هغه موضوع یا شی به ښه وپېژندل شي. همدا د شیانو او د هغې د خواصو پېژندل له انسان سره مرسته کوي چې یوه عملیه په ښه توګه ترسره کړي. ښایي چې یو ړوند سړی د لمس کولو او اورېدلو په واسطه لاره پیدا کړي، خو که همدغه سړي د لیدلو توان لرلای او د باصرې حس یې روغ وای، نو ده به په اسانۍ سره لاره موندلې وای.
د حواسو له ځانګړتیاوو څخه یوه داده چې د یوه حس زیات فعالیت د بل فعالیت تراغېزې لاندې راولي د مثال په توګه: که ځوک په ډېر ځیر سره یوې خبرې ته غوږ ونیسي، د لیدلو وړ ځینو شیانو ته به یې پام نشي او یا که چېرې یوې منظرې ته په ځیر سره وکتل شي، نو نورو ارزونو ته به د انسان پام نه وي.
حواس زموږ د زده کړې لارې دي. له همدې امله د ښوونې او روزنې پوهان په دې عقیده دي چې په زده کړې کې د زده‌کوونکو ټول حواس باید په کار واچول شي چې په هر اړخېزه توګه د شیانو او موضوعګانو ځانګړتیاوې وپېژندل شي. هر حسي غړی باید د چاپېریال د پېژندلو لپاره خپله دنده ترسره کړي. د لیدلو حس د لیدلو، د اورېدلو حس د اورېدو د بویولو حس د بوی او د ذایقې حس د ذایقې د درک لپاره په کار یوړل شي. په ځینو حالتونو کې د یوه شي د پېژندلو لپاره باید څو حواسه سره یوځای په کار واچول شي. ښوونکو ته په کار دي چې د زده‌کوونکو د حسي غړو د فعالیت په هکله بشپړ معلومات ولري، د هغوی د حسي غړو تحمل ورته څرګند وي.
د پاملرنې درک:
سره له دې چې د سایکولوژي په زیاتو مأخذونو کې د توجه (پاملرنې) او درک موضوعګانې په ځانګړي توګه توضیح او تشریح شوي دي، خو څرنګه چې دا دواړه معرفتي عملیې تل یو له بل سره تړلې دي، نو ځکه دلته تر یوه سرلیک لاندې راوستل شوی، په حقیقت کې دا دواړه سره نژدې اړیکې لري. توجه که د یو څیز د پېژندلو لپاره د څراغ په شان لګېدلې رڼا وبلله شي نو له نورو شیانو څخه د مطلوب څیز تمیز او توپیر کول ادراک ګڼلای شو.
یو شی یا یوه موضوع له پاملرنې پرته نشي درک کیدلی. یو سایکولوژست پوښتنه کوي چې یو شخص په یوه وخت کې څو شیانو ته پام کولای شي؟ بل سایکولوژست پوښتنه کوي چې موږ په یوه وخت کې څو شیان درک کولی شو. دواړه پوښتنې د توجه او ادراک د ګډو مفهومونو څرګندوی دي او بیا په ځینو حالتونو کې دا دواړه د بېلابېلو معرفتي

عمليو په توګه معرفي شوي دي.
په ډېرو حالتونوکې توجه کول له درک کولو څخه وړاندې بلل شوې ده. په دې حالتونو کې له توجـه وروسـته هغـه درک کولی شو، خو دا هم باید وویل شي چې توجه خامخا د درک سبب نه ګرځي. د دې امکان شته چې انسان خپلـه توجه یا پام غږ ته واړوي، خو څه یې غوږ ته ونه رسیږي او یا ښایي چې د کوم شي د کتلو هڅه وکړي، خو هغـه څـه چې غواړي ویې نه ویني. داسې هم پیښیږي چې یوې موضوع ته ښه په ځیر غوږ ونیسي، خو پرې پوه نشي. سره لـه دې چې توجه کول د درک کولو لپاره یو ډول تیاری نیول دي، خو موږ هرڅه ته پام نشو اړولای او بایـد دا انتظـار و نـه لرو. دا هم باید په یاد وساتل شي چې توجه زیاتره د خپلې خوښې (د انتخاب) خبره ده. د زیاتې روښانتیا لپاره له همـدې برخې څخه وروسته توجه او ادراک بېل بېل توضیح یا تعریفیږي.

**الف: ادراک:**

ادراک د احساس په شان یو معرفتي عملیه ده او په ذهن کې د شیانو له بشپړ انعکاس څخه عبارت ده چې نېغ په نېغـه د انسان پر حسي غړو اغېزه کوي. د ادراک په عملیه کې د یوه شي یا موضوع د ټولو خواصو د انعکاس بشپړ تصویر پـه ذهن کې منځ ته راځي، خو هغه تصویر چې په دې ډول د ادراک په نتیجه کې منځ ته راځی د محـسوساتو یـوه سـاده مجموعه نه ده، خو د هغوی لرونکي وي، نو ځکه شیان په یوځل درک کیږي. احساس له ادراک څخه څه توپیر لري؟
لکه څنګه چې مو مخکې وویل، احساس د شیانو د صفاتو ځانګړي انعکاسات دي، خو ادراک په واقعـي ډول د شـیانو دلیدلو د کلي انعکاس پایله ده، لکه د انسان درک له انسان څخه، د یوه کتاب یا د یوې پېښې درک کـول او داسـې نور. انساني ادراک لکه: نور نفساني فعالیتونه، د شخصیت له هیجاناتو او احساساتو سره نږدې اړیکې لري، نـو ویـل کېدای شي چې ادراکي عمل ته په یو اړخ ډېره لګوي.

**ب: توجه:**

توجه یا پاملرنه له شعوري ځیر کېدنې څخه پر هغه شي چې درک شوی وي او یا په یاد راغلی وي او یا یې درک کـول مطلوب وي عبارت ده. هغه څه چې په پاملرنه کې اهمیت لري عبارت دي له: موخه، مـرام، پـه زړه پـورې والـی، هڅونې، او داسې نور.
د سورو په نامه د سایکولوژۍ یو پوه وایي: (توجه د زده کړې کړکۍ ده. د همدی کړکۍ له لارې موضوعات ذهن تـه لار پیدا کوي، خو که دا کړکۍ تړلې وي، هېڅ شي به ذهن ته داخل نشي.) سایکولوژیستان د تدریس په بهیـر کـې د زده‌کوونکو له ټولو محرکاتو څخه د ګټې اخیستلو او د ښوونکو خبرو ته غوږ کېښودلو په هکله دا لاندې ټکي په ګوتـه کوي:
۱– د ښوونکي خبرې باید ډېرې هڅوونکې وي.
۲– موضوع باید ډېره په زړه پورې وي.
۳– د درس متن باید د زده‌کوونکو له ورځینی ژوندانه سره اړیکې ولري.
سربېره په پورتنیو عواملو نور عوامل چې په توجه یا پاملرنې باندې اغېزه لري دادي: د ژوندانه اړتیاوې، توان، د توجه یـا پاملرونکي انرژي، په پاملرنې کې پوخوالی او تمرین، د موخې ټاکنه، ښه پلان شوی عمل او داسې نور.
همدا راز فزیولوژیکي عوامل د پاملرنې په وړاندې خنډونه جوړوي، لکـه بـې خـوبي، سـتومانتیا، د داخلـي غـدو (اندوکرایف) په ترشحاتو کې کموالی یا زیاتوالی، د اعصابو د سیستم ګډوډي او یا نفساني منفي عوامل لکـه اندیـښنه، وېره او نور.

**حافظه:**

د حافظې موضوع او تعریف: حافظه د یاد ته سپارلو، په یاد کې ساتلو او بیا د یاد راوړلو لـه لارې د انـسان د تجربـو انعکاس دی.
څرنګه چې د تېرو تجربو له مخې د راتلونکي وخت لپاره پلان جوړېږي او همدارنګه اوسني فعالیتونه د تېرو تجربـو پـر

بنسټ ولاړ وي، نو که څوک خپله حافظه له لاسه ورکړي، نه به د حاضر وخت لپاره کوم منظم فعالیت تر سره کړای شي او نه به هم د راتلونکي وخت لپاره پلان جوړ کړای شي.

**هغه عوامل چې پر حافظې باندې اغېزه لري:**

د حافظې فعالیت په یو شمېر عواملو پورې اړه لري چې عبارت دي له:

۱– هڅوونکې پوښتنې.

۲– د موضوع یاشي معنا او مفهوم.

۳– د کل او جزء تر منځ اړیکې.

۴– د موضوع او یا عمل بیا تکرارول (بیا ویل او بیا ترسره کول)

۵– په زده کړه کې چټکوالی یا چټکه زده کړه.

۶– په زړه پورې والی.

۱– هڅوونکې پوښتنې: هڅوونکې پوښتنې د زده کړې او یادولو په برخه کې ډېر ارزښت لری. د مثال په توګه: که څوک څه شي ته اړتیا ولري هغه به زر او په آسانه توګه حافظې ته وسپاري او هم به یې د اړتیا په وخت کې په فکر کې راولي او ورڅخه به ګټه واخلي.

۲– د موضوع یا شي معنا او مفهوم: د پوهانو له څېړنو څخه دا څرګنده شوي ده چې بامعنا او با مفهومه موضوعګانې له بې معنا او بې مفهومه موضوعګانو څخه په آسانۍ حافظې ته سپارل کېږي او هم په آسانۍ بیا په یاد راوړل کېږي.

۳– دکل او جزء رابطه: د ګشتالت د ښوونځي دغه تیوري چې لومړی کل درک کیږي او بیا جزء. د زده کړې په لرغونې طریقې کې بدلون راوستی دی. تجربو ثابته کړې ده چې د کل مطالعه د زده کړې کار معنا لرونکی کوي او حافظې ته د موضوعګانو سپارل او د هغې دوام زیاتوي.

۴– د موضوع یا عملیې تکرارول: کومه موضوع چې انسان مخکې حافظې ته سپارلې وي او یا کومه عملیه یې زده کړې وي که بیا تکرار شي په ښه شان په حافظه کې ځای نیسی.

۵– په زده کړه کې چټکوالی: سره له دې په خلکو کې دا خبره عامه ده چې هرڅه ژر زده کړای شي، هغه ژر هېرېږي، خو د سایکولوژیستانو په نظر کوم شی چې سم زده کړای شي، هغه به تر ډېرې مودې په حافظه کې پاتې شي. دا مهمه نه ده چې ژر زده شوې وي او که په ځنډ، خو په چټکۍ سره زده کړه دا ګټه لري چې انسان د مفهومونو اړیکې ښه درک کوي ا و څوک که دا اړیکې ښه درک کړي، نو بیا په یاد راوستل به ورته آسانه شي. یعنې دا خبره سمه نه ده چې هر هغه شی چې ژر زده شي، ژر هېرېږي، هېرول او په یاد ساتل د زده کړې په کیفیت، د زده‌کوونکو په ظرفیت، استعداد او نورو عواملو پورې تړلي دي.

۶– په زړه پورې والی: داهم تجربو ښودلې ده چې هرڅه په مینه او خوښۍ سره زده شي، د هغې دوام به په حافظه کې زیات وي او هغه څه چې له ډار او تشویش سره یوځای زده شي، دوام به یې په حافظه کې لږ وي. څرنګه چې پوهېږو، زده کړه یو دوامدار بهیر دی او زده کړه ډېر زیات نور عوامل هم لري چې عبارت دي له تفکر، په تفکر باندې اغېزمن عوامل، د زده کړې د فعالیتونو هڅوونکې.

۱– داخلی سرچینې، بهرنۍ سرچینې، شخصي سرچینې، بې نظمه زده کړه، تنظیم شوې زده کړه، د تنظیم شوې زده کړې ډولونه لکه (درس) د تنظیم شوي زده کړې نور ډولونه لکه (کورنۍ دنده) د زده‌کوونکو سره انفرادي او ځانګړي درسونه، علمی سیر، سیمینار، پروژو او عملي کارونه او نور.

**ماخذ:** د ښوونکو لپاره لارښود (آزمایښتی مسوده)

**لیکوالان:** سعدالله صاحب زاده – غلام دستیگر خاورین

**لسم لوست:**

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعت ۴۵ دقیقې)

| گڼه | د مطالبو سرلیکونه | | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | د یووالي گټه | |
| ۲ | د زده کــــړې پوهنیزې، مهارتي، ذهنيتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د لوست کلمې او جملې به روانې ولولي.<br>– د لوست (یووالي) اصلي مطلب په هکله به معلومات وړاندې کړي.<br>– د متن پوښتنو ته به په شفاهي توگه ځوابونه ووایي.<br>– د پوښتنو سم ځواب به په نښنه کړای شي.<br>– د لوست (کیسې) مطلب به په لنډه توگه وویلای شي.<br>– په دو کسیزه توگه به د لوست محاوره د ټولگي په وړاندې ترسره کړای شي.<br>– د نوو لغتونو معنا به ووایي او مناسبې جملې به ورته جوړې کړي.<br>– د لوست د پای فعالیتونه به په خپلواک ډول سرته ورسولای شي. | |
| ۳ | د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، په دوه کسیزه توگه محاوره | |
| ۴ | د تدریس وسیلې او مرســــتندوی توکي | د کلمو لیکلي کارتونه، تخته، تباشیر او نور او د امکان په صورت کې د یووالي په ارتباط ځینې انځورونه او عکسونه. | |
| ۵ | د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د سوال او ځواب په ډول ارزونه، د یادداشت کتابچه. | |
| ٦ | د زده کــــړې او تدریس فعالیتونه | ستړي مه شي، حاضري اخیستل، د تېر لوست د لنډې ارزونې په باب پوښتنې او د کورنۍ دندې کتنه. | ٦ دقیقې |
| ۷ | د انگېــــــزې رامنځته کول | – تاسو کله د یووالي په اړوند په خپل کلي، کور کې څه اورېدلي دي؟<br>– ستاسو په فکر د یوې کورنۍ او ټولنې د بریالیتوب راز په څه شي کې دي؟ | ۴ دقیقې |

| وخت | د زده‌کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | – زده‌کوونکي د متن جملو ته په دقت ګوري او غـــوږ نیسي.<br>– زده‌کوونکي په ځانګړې پاملرنې د کیسې په مطلـــب ځانونه پوهوي.<br>– زده‌کوونکي خپلو نیمګړتیاوو ته پاملرنه کوي.<br>– زده‌کوونکي په خپلو ډلو کې ورکړل شوې کلمې معنا او په جملو کې یې کاروي.<br>– زده‌کوونکي په دوه کسیزه توګه په محاوره کې برخه اخلي.<br>– زده‌کوونکي د لوست لنډیز ته په غور غوږ نیسي او د نیمګړتیاوو په باب پوښتنې کوي.<br>– زده‌کوونکي هر یو د اتفاق او یووالي په بـــاب څـــو کرښې مقاله لیکي او په بله ورځ یې خپلو ټولګیوالو ته اوروي. | – په مناسب لوړ غږ متن لولي.<br>– ښوونکی د کیسې په اصلي مطلب لنډې څرګندونې کوي.<br>– ښـــوونکی پـــر څـــو کمـــزورو زده‌کوونکو باندې متن لولي او په سم تلفظ کې مرسته کوي.<br>– ښوونکی زده‌کوونکي په ډلو وېشي او هرې ډلې ته سپارښتنه کوي چې د لوست ورکړل شوې کلمې معنا او په جملو کې یې وکاروي.<br>– ښـــــوونکی دوه، دوه تنـــــه زده‌کوونکي د ټولګي مخـــې تـــه راغواړي او د یووالي په هکله پرې خبرې اترې کـــوي او ښـــوونکی ورسره مرسته کوي.<br>– ښوونکي د لوست لنډیز بیانوي.<br>– ښوونکی د کورنۍ دندې په بـــاب زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي. |

| | |
|---|---|
| **د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**<br>**لګیا:** د یو کار د سرته رسولو په اړه مشغولیدل.<br>**الوتل:** پرواز، پریدن.<br>**هغه:** د دریم شخص مذکر غایب لپاره استعمالیږي لکه هغه (احمد) لوبې کوي.<br>هغې؛ د دریم شخص د غایب مونث لپاره اشاري ضمیر دی لکه هغې (زرمېنې) وویل.<br>**ما:** متکلم ضمیر دی لکه ما ډوډۍ وخوړه– ما سبق ولوست.<br>یووالي: اتفاق او اتحاد. | |
| **د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه**<br>– یووالي څه ته وایي؟<br>یووالی اتفاق او اتحاد ته وایي، په یووالي کې بریالیتوب نغښتی دی، په یووالي سره هر ډول ستونزې هوارېږي.<br>یووالی څه ګټې لري؟<br>– یووالی ستونزې هواروي.<br>– یووالی نېکمرغی رامنځته کوي.<br>– یووالی نفاق او ځانځاني له منځه وړي.<br>د یو آزاد او خپلواک ولس د بریالیتوب راز په څه کې دی؟<br>په یووالي کې دی.<br>څنګه کولای شو یو بریالی هېواد واوسو؟<br>هغه وخت چې ټول افغانان خپل منځي یووالی ټینګ کړي. | |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

## د يووالي ګټې

څه ښه وايي چې (له يو لاس څخه ټک نه خېژي.) رښتيا هم چې يو لاس هيڅ هم نشي کولای. هوښياران وايي (چې نه لري سرې، نه دې کورت خوري، نه غورې.) يووالی او اتفاق چې نه وي له يوې کورنۍ نه در واخله بياتر کلي، ولس، ولسوالۍ، ولايت آن تر هېواده پورې نشي کولای چې خپل سرنوشت او راتلونکي وټاکي. يووالی دی چې انسانان له بدمرغيو څخه ژغوري.

که چېرته د يو پلار زامن په خپل کور کې د اسلامي قوانينو لاندې يووالي ولري، نو د هغوی ټول کلی نشي کولای چې په هغوی برلاسی شي او په هغوی حکمراني وکړي.

لازمه ده چې ښاغلی ښوونکی ټول زده‌کوونکي يووالي ته وهڅوي. په هغو کې د يووالي روحيه ژوندۍ وساتي. ټول زده‌کوونکي له قومي، ژبني، سمتي، نژادي او نورو تعصبونو څخه لېرې وساتي او په هغوی کې د يووالی، ورورولۍ روحيه ژوندۍ وساتي. زده‌کوونکي په دې وپوهوي چې بې اتفاقي، او جدايي کې د انسان او مسلمان څومره زيان دی او هغه څوک چې په مسلمانانو کې بې اتفاقي رامنځ ته کوي د هغوی لپاره څومره سخت عذاب دی.

رسول کريمﷺ فرمايي (جماعت او يووالی رحمت دی، جدايي او فرقه والی عذاب دی.) (مسند ا حمد) همدارنګه رسول اللهﷺ په يو بل حديث کې چې نسايي يې روايت کړی دی، داسې مهرباني کوي او وايي: (چا چې زما په امت کې نفاق جوړاوه سر يې ووهئ) (مسند نسايي)

افغانستان د ټولو افغانانو ګډ کور دی په دې لوی او سر لوړي هيواد کې بېلابېل قومونه او ولسونه ژوند کوی چې د افغان په نوم ياد يږي.

د دې هېواد ټول اوسېدونکي يو واحد ملت او هېواد جوړوي. زموږ د ګران هېواد ټول قومونه او ولسونه يو له بل سره ورونه دي. د دې هېواد خلک د اساسي قانون په وړاندې برابر دي. دغه غيرتمن او هېواد پال وګړي دخپلو ملي ارزښتونو لکه: ملي دودونه او ملي وياړنې او نور په ډېره ښه توګه ساتلي او ساتي يې او د دغو ملي ارزښتونو د بداينې او پر مختګ لپاره کار او زيار ګالي. د دې هېواد د بريالتوب او سرلوړۍ راز په څه شي کې نغښتی دی؟ څرګنده ده چې په ملي يووالي کې. زموږ د خلکو د ورځيني ژوند د پرمختګ لپاره يووالی اړين دی. که غواړو چې سوکاله او ودان هېواد ولرو، بايد چې په خپل منځ کې رښتينی يووالی ولرو. د يوه هېواد ټولنيز اقتصادي، علمي او فرهنګي پرمختګونه هغه وخت امکان لري چې د هغه هېواد ټول قومونه او ولسونه ملي يووالی ولري او خپلو ټولنيزو اړيکوته په درنه سترګه وګوري، يو دبل درناوی او حقونه يې وپيژني.

**ماخذونه:**

خوږې خبرې

مشکات شريف او سيرت النبی، پښتو ژباړه رحيق المخقوم

# يوولسم لوست:

## د تدريس وخت: (درې درسي ساعت ۴۵ دقيقې)

| ګڼه | د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | ښوونه او روزنه | |
| ۲ | د زده کـــــړې پـــــــوهنيزې، مهارتي، ذهنيتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د ښوونې او روزنې په معنا او مفهوم وپوهېږي.<br>– د لوست کلمې او جملې به روانې ولولي.<br>– د لوست د نويو لغتونو معنا زده کړي او په جملو کې يې وکاروي.<br>– د لوست پوښتنو ته مناسب ځوابونه ووايي.<br>– په پوښتنو او ځواب ورکولو کې فعاله ونډه واخلي.<br>– د پوهو او ناپوهو خلکو د توپير په اړه خبرې او معلومات ورکړي.<br>– زده‌کوونکي په خپله خوښه د لوست پر يوې موضوع خبرې وکړي.<br>– زده‌کوونکي عادی خبرې کول زده کړي.<br>– د لوست د پای فعاليتونه به په خپلواک ډول سرته ورسوي. | |
| ۳ | د تدريس لارې | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، په دوه کسيزه توګه محاوره. | |
| ۴ | د تدريس وسيلې او مرســـــتندوی توکي | د کلمو ليکلي کارتونه، تخته، تباشير، تخته پاک. | |
| ۵ | د ارزونې لارې او وسيلې | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه، د سوال او ځواب په ډول ارزونه.د يادداشت کتابچه. | |
| ٦ | د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سترې مه شې، حاضري اخيستل، د کورنۍ دندې کتنه. | ٦ دقيقې |
| ۷ | د انګېــــــــزې رامنځته کول | – آيا ويلای شئ چې پخوا به خلکو چېرې زده کړې کولې؟<br>– مور ولې ليک او لوست زده کوو؟<br>– ښوونکی دې د انګيزې پوښتنه پر تخته وليکي. | ۴ دقيقې |

| وخت | د زده‌کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ دقیقې | – زده‌کوونکي د متن جملو ته په دقت ګوري او غور نیسي.<br>– زده‌کوونکي د ښوونې او روزنې په اړه معلومات تر لاسه کوي.<br>– زده‌کوونکي هر یو په وار متن د کتاب له مخې لولي.<br>– زده‌کوونکي په ډلو کې کلمو ته جملې جوړوي.<br>– زده‌کوونکي په علاقمندۍ ځوابونه ورکوي.<br>– دوه دوه زده‌کوونکي د سوال او ځواب په فعالیت کې ونډه اخلي.<br>– زده‌کوونکي د پوهو او ناپوهو خلکو د توپیر په اړه معلومات بشپړوي.<br>– څو زده‌کوونکي په خپله خوښه پر یوې موضوع خبرې کوي.<br>– زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم کورنۍ دندې ترسره کوي. | – ښوونکی دې متن په مناسب غږ ولولي.<br>– ښوونکی دې د ښوونې او روزنې په ارزښت د زده‌کوونکو له سویې سره سم څرګندونې وکړي.<br>– ښوونکی دې په څو کمزورو زده‌کوونکو باندې متن وار په وار ولولي او د نیمګړتیا په صورت کې دې بشپړه مرسته وکړي.<br>– ښوونکی دې د کلمو لیکلي کارتونه په هرې ډلې په مساوي توګه ووېشي ترڅو زده‌کوونکي د یو بل په مشورې ورته مناسبې جملې جوړې کړي. ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.<br>– ښوونکی دې له هرې ډلې څخه د متن په اړوند پوښتنې وکړي.<br>– ښوونکی دې د هرې ډلې څخه یو یو تن د ټولګي مخې ته را وغواړي، یو زده‌کوونکی دې پوښتنه وکړي او بل دې ورته ځواب ووایي، ښوونکی دې د نیمګړتیا په صورت کې مرسته ورسره وکړي.<br>– ښوونکی دې د پوهو او ناپوهو خلکو د توپیر په اړه معلومات وړاندې کړي.<br>– ښوونکی دې هڅه وکړي چې څو زده‌کوونکي په خپله خوښه پر یوې موضوع د ټولګي په مخکې خبرې وکړي.<br>– ښوونکی دې د متن له لوستل شوې برخې څخه زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده وسپاري. |

| | |
|---|---|
| **د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**<br>ښوونه څه ته وايي؟ ښوونه تعليم او زده کړې ته وايي.<br>روزنه څه ته وايي؟ روزنه تربيت ته وايي.<br>غير رسمي زده کړې چېرې ترسره کېدې؟ غير رسمي زده کړې په کورونو او جوماتونو کې ترسره کېدې.<br>**هلکان:** د مذکر جمع دی چې مفرد شکل يې (هلک) دی.<br>**نجونې:** د مونث جمع ده چې مفرد شکل يې (نجلۍ) ده.<br>(هېواد، هلکان، نجونې) کلمې عام نومونه دي. | |
| **د فعاليتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه**<br>– د ذهن ودې ته څه شی ارزښت لري؟ د ذهن ودې ته د ښو او علمي منابعو مطالعه.<br>– د انساني ژوند د نېکمرغۍ کلي څه شی ده؟ زده کړه او تعليم ترسره کول.<br>– موږ ولې زده کړه کوو؟ د دې لپاره چې ژوند مو روښانه او د ناپوهۍ له تيارو څخه ووځو. | |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**الف– د ښوونې (تعليم) پېژندنه او تعريف**

ښوونه (تعليم) هغو فعاليتونو ته ويل کيږي چې د روزنې لپاره کارول کيږي. هغه فعاليتونه چې ښوونکی يې په يوازې ډول او يا د زده کړې او د تدريس د موادو په مرسته زده‌کوونکو ته ورښيي، ښوونه بلله کيږي. ښايي ښوونکی دا فعاليتونه په لومړنيو، لوړو ښوونځيو، پوهنتون او يا د يوې لنډې مودې په کورسونو کې ترسره کړي. په مشخص ډول ښوونه داسې تعريف کيږي:

ښوونه مخکې له مخکې ځخه د هغو پلان شويو او د هدف په لور د ټاکلو شويو فعاليتونو مجموعه ده چې د زده کړې په غرض د زده‌کوونکو لپاره د ښوونکو له خوا طرح او ترسره کيږي، د زده‌کوونکو او ښوونکو ترمنځ د متقابل عمل په توګه دوام پيدا کوي.

دا تعريف يوازې هغه ډول ښوونې لپاره تطبيقيږي چې په ټولګي کې د ښوونکو او زده‌کوونکو ترمنځ ترسره کيږي او د ښوونې په نورو هغو ډولونو باندې چې راډيو، تلويزيون، کتاب او داسې نورو وسيلو له لارې ترسره کيږي او د ښوونکو او زده‌کوونکو په شان مخامخ او دوه اړخيزه اړيکې پکې موجود نه وي، د تطبيق وړ نه دی. د دې لپاره چې په تعريف کې د ښوونې ټول ډولونه شامل شي يو جامع او بشپړ تعريف ته اړه ده چې ښايي داسې تعريف کړای شي:

(( ښوونه هغه ډول پلان شوي فعاليت ته ويل کيږي چې هدف يې د زده‌کوونکو زده کړه وي.))

خو په دې کتاب کې له ښوونې ځخه مقصد هغه ښوونه ده چې په ټولګي کې د ښوونکو او زده‌کوونکو د متقابل عمل په پای کې ترسره کيږي.

**ب– د روزنې (تربيت) پېژندنه او تعريف**

سره له دې چې ښوونه او روزنه تل د يو بل ترڅنګ په کار وړل کيږي، خو دا دوه مترادفې کلمې نه دي چې يو پر بلې دلالت وکړي، بلکې هره يوه يې ځانګړی مفهوم دی چې بېل بېل تعريفونه لري. د دې خبرې د لابښې څرګندونې لپاره هر يوه ته بېل بېل تعريف په کار دی:

(( روزنه (تربيت) له پرله پسې او منظم بهير ځخه عبارت دی چې هدف يې له جسماني، سايکولوژيکي، اخلاقي او ټولنيزې ودې او پرمختيا سره مرسته کول دي. يا داچې د ټولنې د منلو شويو معيارونو لورته د روزنې لاندې وګړو شخصيتونو ته وده ورکول او هم د هغوی د استعدادونو غوړول روزنه بلل کيږي.

ښوونه او روزنه د سلوک بدلون ته وايي.

**مأخذ:** د ښوونکو لپاره لارښود (آزمايښتي مسوده)

**ليکوالان:** ښاغلی سعد الله صاحبزاده او ښاغلی دستګير خاورين

## دوولسم لوست:

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| وخت | موضوع | د مطالبو سرلیکونه | ګڼه |
|---|---|---|---|
| | روغتیا | د لوست موضوع | ۱ |
| | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د دې لوست په زده کړه به د روغتیا په باب معلومات تر لاسه کړي.<br>- د لوست متن به سم او روان ولولي او د پېچلو کلمو سم تلفظ به وکړي.<br>- پوښتنو ته به په پښتو ژبه شفاهي ځوابونه ووایي.<br>- نیمګړې جملې به د مناسبو کلمو په کارونې بشپړې کړي.<br>- زده‌کوونکي به د ټولګیوالو په وړاندې په وار سره خبرې اترې وکړي.<br>- زده‌کوونکي به د ټولګیوالوپه وړاندې د بېلابېلو ناروغیو نومونه واخلي او له هغو څخه به د ځان ساتنې په اړه نورو ته معلومات ورکړي.<br>- د دغه لوست په لوستلو سره به زده‌کوونکو ته د پښتو ژبې د زده کړې مینه پیدا او له زده کړې څخه به یې ډاډ ترلاسه کړي.<br>- زده‌کوونکي به په خپلواک ډول د لوست دپای فعالیتونه سرته ورسوي. | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي موخې | ۲ |
| | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، په دوه کسیزه توګه سوال او ځواب | د تدریس لارې | ۳ |
| | د (ی) لرونکو کلمو لیکلي کارتونه او د امکان په صورت کې د ځینو پاکو او ناپاکو خوړو او مېوو انځورونه او تصویرونه. | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | ۴ |
| | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه او د سوال او ځواب ارزونه د یاداشت کتابچه. | د ارزونې لارې او وسیلې | ۵ |
| ۶ دقیقې | ستړي مه شي، حاضري اخیستل او د کورنۍ دندې کتنه ۱۰ دقیقې | د زده کړې او تدریس فعالیتونه | ۶ |
| ۴ دقیقې | - څه فکر کوئ چې انسان د څه شي له امله ناروغه کیږي؟<br>- تاسو پخوا د روغتیا په باب څه اوریدلي دي؟ که مو اوریدلي دي، څنګه؟<br>- موږ ولې ناروغه کیږو؟ | د انګېزې رامنځته کول | ۷ |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی لوست لولي او ستونزمنې کلمې پر تخته لیکي، هغه تلفظ او معنا کوي. | – زده‌کوونکي متن ته په پوره ځیرتیا ګوري او غوږ نیسي. | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکی لوست په څو زده‌کوونکو وار په وار په لوړ آواز لولي او مرسته ورسره کوي. | – زده‌کوونکي متن ته پاملرنه کوي او د خپلو نیمګړتیاوو په باب پوښتنه کوي.<br>– زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي. | |
| – ښوونکی زده‌کوونکي په مناسبو ډلو وېشي او سپارښتنه کوي چې لوست په خپلو کې د یو بل په مرسته په چوپتیا ولولي، ښوونکی څارنه کوي. | – زده‌کوونکي په ډلو کې یو د بل په مرسته نیمګړې جملې بشپړې کوي. | |
| – ښوونکی بېلابېلو ډلو ته سپارښتنه کوي چې نیمګړې جملې د مناسبو کلمو په کارونې سره په خپلو کتابچو کې بشپړې کړي. ښوونکی څارنه او لازمه مرسته کوي. | – زده‌کوونکي په خبرو اترو کې فعاله ونډه اخلي. | |
| – ښوونکی دوو زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي او یوه یوه دقیقه د ناروغۍ په باب خبرې وکړي، ښوونکی مرسته کوي. | – زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – په دې برخه کې کمزورو زده‌کوونکو ته زیاته پاملرنه کوي. | | |
| – ښوونکی د متن د لوستل شوې برخې څخه کورنۍ دنده سپاري لکه | | |
| – (هر یو دې په خپلو کتابچو کې د بېلابېلو ناروغیو په باب درې درې کرښې په پښتو ولیکي. | | |

| | | |
|---|---|---|
| **د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**<br>ساري ناروغۍ: هغه ناروغۍ دي چې په بېلابېلو بڼو له ناروغ انسان څخه روغ انسان ته ور انتقالیږي.<br>ناپاک څیزونه: ټولې هغه مېوې، دانې، اوبه او نور خوراکي شیان چې په لارو او کوڅو کـــې پلـــورل کیږي، ناپاک دي ا و له خوړلو څخه یې باید په کلکه ډډه وشي.<br>پرې مینځل: د فعل کلمه ده چې د شستن معنا لري.<br>مېوې له خوړلو څخه مخکې باید پرې مینځل شي او بیا وخوړل شي. | | |
| **د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه**<br>– د روغتیا د ساتلو لپاره باید څه وکړو؟<br>ټولې طبې لارښوونې باید په پام کې ونیول شي.<br>کوم شیان د ناروغۍ لامل کیږي؟<br>ناپاک خواړه، ناپاکې اوبه، ناپاک چاپېریال او له دیني لارښوونو څخه لیرې والي.<br>روغتیا څه ته وایي؟<br>روغتیا دې ته وایي چې یو څوک په ذهني او جسمي توگه روغ ا و جوړ وي او خپـــل ورځینـــي کارونه د سمې او پلان شوې طرحې له مخې سرته ورسوي. | | |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

## روغتيا

روغتيا او سلامتيا د لوی خدایﷻ لوی نعمت دی چې انسان ته يې بښلی دی. د نړۍ له ټولو نعمتونو څخه ښــه او پــه زړه پورې نعمت روغ بدن دی. که څوک غواړي چې په ژوند کې نېکمرغه، بريالی او خوشحاله ژوند ولري او د خپــل لوی خدایﷻ د عبادت په ګډون خپلې ورځنۍ چارې په سم ډول سرته ورسوي او له خپلو دندو څخه ګټه او خوښــي تر لاسه کړي، نو د هر څه نه دمخه بايد خپلې روغتيا ته پاملرنه وکړي. هغه څوک چې د روغتيا او سلامتيا خاونــد وي، د دنيا له ټولو نعمتونو څخه خوند اخيستلای شي. د مثال په توګه روغ او رمټ انسان که نارينه وي او که ښځه، خپلــې ورځنۍ چارې او دندې په سم او منظمه توګه ترسره کولای شي، لکه: رسمي او غير رسمي کارونه او داسې نور.
په بشري ټولنه کې ځينې پخې خبرې له يوه نسل څخه بل نسل ته سينه په سينه په ميراث پاتې کيږي چې دغه ډول خبــرو ته د کاڼي کرښې وايي، لکه: چې هوښيارانو او عالمانو ويلي دي: (( روغ عقل په روغ بدن کې وي))
همدارنګه د بشريت ستر لارښود حضرت محمدﷺ فرمايي:
پنځه (شيان) مخکې له پنځو غنيمت وګڼئ.
**لومړی:** روغتيا مخکې له ناروغتيا څخه.
**دويم:** فراغت مخکې له مشغوليت څخه.
**دريم:** ځواني مخکې له سپين ږير توب څخه.
**څلورم:** مالداري مخکې له فقر څخه.
**پنځم:** ژوند مخکې له مرګ څخه.
له پورتنيو څرګندونو څخه بايد ووايو چې که چېرې انسان روغ وي څرګنده ده چې خپل کارونه ســم او مــنظم ســرته رسولای شي او که چيرې خدایﷻ مه کړه انسان ناروغه وي، نو بيا خپل کارونه په سمه توګه سرته نشي رسولای.
همدا راز انسان د نورو انساني دندو ترڅنګ بايد په دوامداره توګه خپلې روغتيا ته ډېره زياته پاملرنه وکــړي. د روغتيــا ساتنې لومړنی شرط دا دی چې بايد پاک خواړه وخوري، پاکې جامې واغوندي او خپل بدن پــاک او ســوتره وســاتي، ځکه نظافت د ايمان يوه برخه ده. که موږ او تاسې خپلو خوړو، جامو او د بدن پاکوالي ته په کلکــه پاملرنــه وکــړو، هېڅکله به ناروغه نشو. که زموږ په چاپيريال کې ميکروبونه نه وي، نو ناروغۍ به هم نــه وي. د ټولــو ځوروونکــو او وژونکو ناروغيو سرچينه ميکروبونه دي.
ميکروبونه هم د خپل وجود، کور، کلي او د چاپيريال له ناپاکۍ څخه پيدا کيږي.
د طب پوهانو دې مهم اصل ته پاملرنه کړې چې له درملنې څخه د وقايې ارزښت ډېر اوچت دی. په وقايې کې لــه يــوې خوا مالي زيان نشته او که وي هم لږ به وي او له بلې خوا د ټولو خطرناکو ناروغيو مخه نيول کيږي.
که چېرې وقايه يعنې د ناروغيو مخنيوی ونشي، نو د ناروغيو د درملنې لپاره زياتو پيسو ته اړتيا پيدا کيــږي او هــم پــه ناروغيو د اخته کسانو بدن کمزوری او د مړينې له خطر سره مخامخ کيږي. دغه راز هغه طبي درمل چې د ناروغۍ د لــه منځه وړلو په خاطر استعماليږي، جانبي عوارض لري او نورې ستونزې منځ ته راوړي. ښه به دا وي چې موږ پاکوالي تــه په يو ستر حياتی ارزښت قايل شو او روغتيا چې د لوی خدایﷻ يولوی نعمت دی په قدر ا و ارزښت يې پوه شو.
روغ او رمټ انسانان نه يوازې دا چې خپل ځان، کورنۍ ته خدمت کوي، بلکې خپلې ټولنې او خلکو ته هم ډېر پــه زړه پورې خدمتونه کولای شي. روغتيا شتمني ده. د دې شتمنۍ ارزښت ته بايد انسانان په تېره بيا زمــوږ خلــک پــه درنــه سترګه وګوري.
**مأخذونه:**
د عامې روغتيا د وزارت راډيوي او تلويزيونی خپرونې.
د سرې مياشتې روغتيا ليکلي لارښوونې.

# دیارلسم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | د مطالبو سرلیکونه | موضوع | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | د مطالعې ارزښت | |
| ۲ | د زده کـــړې پـــــوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي موخې | د دې لوست په لوستلو سره به زده‌کوونکي د مطالعې د ارزښت پـــه اړه معلومات ترلاسه کړي.<br>– متن به روان ولولي.<br>– د متن په دیالوګ کې به په دوه کسیزه توګه فعاله ونډه واخلي.<br>– د مطالعې د ګټو او ارزښت په هکله به خبرې وکړای شي.<br>– د نویولغتونو معنا به زده کړي او په مناسبو جملو کې به یې وکاروي.<br>– پوښتنو ته به مناسب ځوابونه ووایي.<br>– د مفردو نومونو څخه به جمع نومونه جوړ کړي.<br>– د پښتو ژبې د نووکلمو پانګه به یې زیاته شي.<br>– د لوست د وروستۍ برخې فعالیتونه به په یوازې توګه سرته ورسولای شي. | |
| ۳ | د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه (محاوره) | |
| ۴ | د تدریس وسیلې او مرســـتندوی توکي | د مفردو کلمو لیکلي کارتونه،د امکان په صورت کې د مطالعې په اړوند د ځینو ګټورو کتابونو، مجلو او ورځپاڼو راوړل ټولګي ته. | |
| ۵ | د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، سوال او ځواب (دیالوګ) د یادداشت کتابچه. | |
| ٦ | د زده کـــړې او تدریس فعالیتونه | ستړي مه شئ، حاضري اخیستل او د کورنۍ دندې کتنه ۱۰ دقیقې | ٦ دقیقې |
| ۷ | د انګیـــــزې رامنځته کول | ښوونکی دې لاندې پوښتنې په تخته ولیکي او له زده‌کوونکو څخـــه دې داسې وپوښتي چې:<br>– ویلای شئ چې مطاله څه ته وایي؟<br>– مطالعه څه ارزښت لري؟<br>– موږ څنګه خپله پوهه زیاتولای شو؟ | ۴ دقیقې |

| وخت | د زده‌کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ دقیقې | – زده‌کوونکي متن ته په پوره ځیرتیا ګوري او غوږ نیسي.<br>– زده‌کوونکي متن ته پاملرنه کوي او د خپلو نیمګړتیاوو په باب پوښتنې کوي.<br>– زده‌کوونکي په خپلو ډلو کې له مفردو کلمو څخه د جمع کلمې جوړوي.<br>– زده‌کوونکي دې په وارسره د جمعې جوړې شوې کلمې لولي او نوروته یې څرګندونه کوي.<br>– دوه دوه زده‌کوونکي په دیالوګ کې برخه اخلي.<br>– زده‌کوونکي د مطالعې په باب خبرې کوي.<br>– زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دندې سرته رسوي. | – ښوونکی لوست سم لولي او ستونزمنې کلمې پر تخته لیکي، هغه تلفظ او معنا کوي یې.<br>– ښوونکی لوست په څو زده‌کوونکو وار په وار په لوړ آواز لولي او مرسته ورسره کوي.<br>– ښوونکی د مفردو کلمو لیکلي کارتونه چې مخکې له مخکې یې تیار کړي دي، په ډلو وېشي چې هره ډله د یو بل په مشورې له مفردو کلمو څخه د جمع کلمې جوړې کړي. بیا د هرې ډلې یو استازی د خپل ګروپ په استازیتوب هماغه جوړې کړې کلمې د ټولګیوالو په مخکې لولي. ښوونکی دې د نیمګړتیا په صورت کې مرسته وکړي.<br>– ښوونکی دې د ټولګي په مخکې په دوو دووزده‌کوونکو دیالوګ ترسره کړي او د نیمګړتیا په صورت کې دې له دوی سره پوره مرسته وکړي.<br>– ښوونکی دې له څو زده‌کوونکو څخه وغواړي چې د مطالعې د ارزښت په باب لنډې خبرې وکړي.<br>– ښوونکی دې د لوستل شوې برخې څخه بېلابېلې کورنۍ دندې زده‌کوونکو ته سپاري. |
|  | **د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**<br>د ذهن دپیاوړتیا لپاره باید څه وکړو؟ د ګټورو کتابونو، مجلو، ورځپاڼو او نورو علمي منابعو مطالعه ترسره کړو |  |

## ښوونکي ته اضافي معلومات:

### د مطالعې ارزښت

د ښوونځي په چاپېریال کې له درسي کتابونو پرته نورو کتابونو، ورځپاڼو او مجلو لوستلو ته مطالعــه وایــي. مطالعــه د سړي ذهن پیاوړی کوي او د علم او پوهې نوې لارې ورته پرانیزي. مطالعه انسان له بېلابېلو موضــوعگانو لکــه دینــي، علمي، صحي، اخلاقي، کلتوري، تاریخي، ساینسي او داسې نورو څخه خبروي. هغه څوک چې لوستي دي، دې ته یــې هڅوي چې د مطالعې له برکته د علم او پوهې څښتن شي. د مطالعې له برکته انسان علم او کمال ته رســېږي او دمــاغي ځواک ته یې وده او پراختیا ورکوي، چې انسان وکولای شي د ښو او بدو ترمنځ په توپیر وپــوهېږي. فــرانس بــېکن وایي: ((مطالعه انسان بشپړوي.)) د دې خبرې معنا داده، څوک چې مطالعه کوي، یقیناً چې د علــم او پــوهې څــښتن کیږي. د همدغې پوهې په واسطه کولای شي، خپل ځان او ټولنې ته د قدر وړ خدمتونه وکړي، اختــراع وکــړي، ښــه زده‌کوونکي وروزي او نور...

همدارنگه مطالعه انسان د خپل ژوند له مسوولیتونو څخه خبروي او هغه ته لارښوونه کوي چې انسان ډېــر مــسوولیتونه لري.

هغه څوک چې گټور او په زړه پورې دیني او علمي کتابونه او نور علمي منابع مطالعه کوي، هغه به د بــشپړو معلومــاتو خاوند وي.

همدا مطالعه ده چې موږ خپل پروردگار پېژنو، له خپل رب سره اړیکې ټینگوو، د خپل سپېڅلي دین په اړه معلومــات تــر لاسه کوو او پرې عمل کوو. په قرآن عظیم الشان کې هم په دې خبره ټینگار شوی چې د پوهې او مطالعې پــه وســیله د خپل ژوند غوره لاره پیدا کړئ او په هغې لارې باندې روان شئ.

لنډه دا چې مطالعه د انسان ذهن پیاوړی کوي او بیا کولای شو چې خپل ټول کارونه په سمه توگه سرته ورسوو.

خبرې اترې د ژبې له مهارتونو څخه یو مهارت دی چې د بحث لاندې د ژبې د زده کړې لپاره استعمالیږي. له دیــالوگ څخه زموږ موخه زده‌کوونکو ته د دویمې ژبې د سمو او روانو خبرو اترو زده کړه ده. زده‌کوونکي بــه لکــه د لیکنــې برخې په شان په وینا کې هم مفرد، جمع، مونث او مذکر نومونه او نور گرامري اصول په پام کې ونیسي او هغه به ســم وکاروي، پښتو سوچه کلمې او الفاظ به سم تلفظ کړي. د جملو مبتدا او خبر به وپېژني. د فعل او ضــمایرو د کــارونې ځای به وپېژني. هرڅومره چې د دویمې ژبې په زده‌کوونکو باندې د ژبې د زده کړې محاورې او دیالوگونه تر سره شــي په هماغه اندازه یې د ژبې زده کړه پیاوړې کیږي. دویمه ژبه په دیالوگ، خبرو اترو او محاورو زده کیږي. همــدا راز د سوال او ځواب او یا خبرو اترو له لارې د زده‌کوونکو د خبرو کولو جرأت زیاتیږي او پښتو ژبــه ژر زده کــوي، نــو ښاغلی ښوونکی دې زیار وکاږي چې د ژبې په هر درسي ساعت کې په زده‌کوونکو باندې خبرې اترې ترســره کــړي او خپله دې د هغوی ژبنۍ تیروتنو ته پاملرنه وکړي او د نیمگړتیا په صورت کې دې ورسره بشپړه مرسته وکړي.

## څوارلسم لوست:

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | د مطالبو سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | کلمه، نوم او ډولونه یې | |
| ۲ | د زده کړې پوهنیزې، مهارتې، ذهنیتې موخې | د دې لوست په لوستلو سره به زده‌کوونکي کلمه، نوم او ډولونه وپېژني او د نومونو په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>– متن به سم او روان ولولي.<br>– د نویو لغتونو معنا به زده کړي او په جملو کې به یې وکاروي.<br>– پوښتنو ته به مناسب ځوابونه وویلی شي.<br>– د پښتو ژبې په خبرو اترو کې به فعاله ونډه واخلي.<br>– نوم او د هغه د ډولونو په اړه به خبرې وکړای شي.<br>_ په پښتو کې د نوم او د هغه د ډولونو په کارونې به پوه شي.<br>_ د لوست د پای فعالیتونه به په خپلواک ډول سرته روسولای شي. | |
| ۳ | د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴ | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکی | د نومونو د ډولونو لیکلي کارتونه | |
| ۵ | د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، لیکلي ارزونه، سوال او ځواب، د یادداشت کتابچه | |
| ۶ | د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سترې مه شي، حاضري اخیستل او د کورنۍ دندې کتنه | ۶ دقیقې |
| ۷ | د انګېزې رامنځته کول | د مثال په ډول:<br>– کلمه څه ته وایي؟<br>– د کلمو او د هغو د ډولونو زده کړه له موږ سره څه مرسته کوي؟<br>– کولای شئ چې څو کلمې د تختې پرمخ ولیکئ؟ | ۴ دقیقې |

| وخت | د زده‌کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | – زده‌کوونکي متن ته په دقت ګوري او غوږ ورته نیسي.<br>– زده‌کوونکي د ستونزمنو کلمو په معنا ځانونه پوهوي.<br>– زده‌کوونکي په لوستلو کې خپلو لوستیزو نیمګړتیاوو ته پاملرنه کوي.<br><br><br>– زده‌کوونکي مناسب ځوابونه وايي.<br><br>– زده‌کوونکي غوږ نیسي او د خپلو ځوابونو نیمګړتیاوو ته متوجه کېږي.<br><br><br>– زده‌کوونکي په ډېره مینه د تختې مخې ته راځي او په جملو کې نوم او د هغه ډولونه په نښه کوي.<br><br>– زده‌کوونکي په ډلو کې په ورکړل شویو کارتونو کې نوم او د هغه ډولونه په نښه کوي او د هغو په معلومات ورکولو کې برخه اخلي.<br><br>– زده‌کوونکي په یوازې توګه څو نومونو ته جملې جوړوي.<br><br>– زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سرته رسوي. | – ښوونکی متن په مناسب لوړ غږ لولي.<br>– ښوونکی د متن ستونزمنې کلمې پر تخته لیکي او تشریح کوي يې.<br>– ښوونکی متن په څو زده‌کوونکو په لوړ غږ لولي او په نیمګړتیا کې ورسره مرسته کوي.<br>– ښوونکی په شفاهي توګه له زده‌کوونکو څخه داسې پوښتنې کوي چې:<br>– کلمه څه ته وايي؟<br>– د کلمې او د هغې د ډولونو پېژندل له موږ سره څه مرسته کوي؟<br>– ښوونکی د کلمې، نوم او د هغو د ډولونو په اړه لنډ معلومات وړاندې کوي.<br>_ ښوونکی د نوم ډولونه پر زده‌کوونکو باندې د ټولګي او ښوونځي دننه پیدا کوي او هر یو زده‌کوونکی هڅوي چې نومونه وپېژني.<br>– ښوونکی څو جملې پر تخته لیکي او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې په خپله خوښه د تختې مخې ته راشي او په یوه جمله کې نوم او د هغو ډولونه په نښه کړي. د تیروتنې په وخت کې دې نور زده‌کوونکي ونډه واخلي.<br>– ښوونکی دې د نومونو لیکلي کارتونه په ډلو ووېشي چې هغوی په خپلو ډلو کې نوم او د هغه ډولونه په نښه کړي او بیا د هرې ډلې یو استازی د خپلو کارتونو د نوم او د هغه د ډولونو تشریح وکړي، ښوونکی څارنه او پوره مرسته کوي.<br>– ښوونکی له زده‌کوونکو څخه غواړي چې په یوازې توګه په خپلو کتابچو کې څو نومونه ولیکي او بیا ورته جملې جوړې کړي.<br>– ښوونکی څو عام او خاص او نور ډولونه په تخته لیکي او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې په کورونو کې ورته جملې جوړې او هم د نوم ډولونه پکې په نښه کړي. |

| | |
|---|---|
| **د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**<br>**جمله: دوې یا زیاتې اړونده کلمې، چې پوره مفهوم څرګند کړای شي، جمله ګڼله کیږي.**<br>**لکه: همت زما د تره زوی دی.**<br>**: شکیلا په اووم ټولګي کې زده کړه کوي.**<br>**: احمد راغی، مرغۍ والوته.**<br>**پلازمېنه – پایتخت**<br>**ګاونډی – همسایه**<br>**مهال – وخت**<br>**څاروي – حیوانات**<br>**مېړانه – شجاعت، مردانه ګي** | |

## ښوونکي ته اضافي معلومات:

### کلمه نوم او ډولونه يې

هغه لفظ، چې د يوې معنا او موخې لپاره له خولې څخه وځي، کلمه بلل کېږي، يا په بل عبارت کلمه يو معنا لرونکی لفظ ته وايي. مور د يو مقصد د پوره څرگندولو لپاره اړ يو چې څو کلمې سره يوځای کړو. د کلمو له يوځای کولو څخه کلام او جمله جوړېږي.

په پښتو ژبه کې د کلمې ډولونه يا د کلام توکي په وروسته ډول دي.

نوم: نوم د يو شي يا د يو کيفيت او حالت پېژندنه کوي، لکه لمر، زوی، ورور، چرگ، وېره، پوهه، فکر.

د مفهوم له مخې د نوم ډولونه:

نوم د مفهوم او معنا له مخې په پنځه ډوله دی.

۱– خاص نوم چې يو خاص سړی يا يو خاص شی او ځای معرفي کوي. لکه احمد شاه بابا، رحمان بابا، زرغونه انا، کابل، افغانستان، باميان.

۲– عام نوم هغه دی چې يو خاص سړی يا شی او خاص ځای ترې نه مرادېږي اوپر خپلو افرادو يو شان دلالت کوي. لکه سړی، لرگی، پاڼه، ښار،غوښه، الوتونکي، هنداره.

د ظرف نوم: د تصغير نوم، د صوت نوم، د آلې نوم دا ټول د عام نوم ډولونه دي. لکه نندارتون، کورگی، چغهار، مچ شرونی.

۳– د جنس نوم هغه دی چې په لږو او ډېرو باندې يو شان دلالت وکړي، لکه اوبه، غوړي، غنم، تېل، گاز.

۴– د جمعيت نوم، هغه دی چې په لفظ کې مفرد وي او په معنا کې د يوې ډلې او جمعيت لپاره راځي، لکه لښکر، جرگه، رمه، ټولي، اولس.

د جمعيت نوم د ډېرو ډلو په لحاظ جمع کېږي، لکه: جرگې، رمې، او لسونه.

۵– مجرد نوم هغه دی چې مادي وجود نه لري يعنی په سترگو نه ليدل کېږي، لکه: عقل، پوهه، وېره.

نوم د جوړښت له مخې پر دوه ډوله دي.

مرکب نوم، چې له دوو يا زياتو کلمو څخه جوړ شوی وی، لکه: شېرپور، شېرشاه مېنه، تنی کوټ، بادام گل.

بسيط نوم، چې يوه مفرده کلمه وي او نور توکي نه لري، لکه: کټ، اور، لاس، سر، زړه.

مرکب نومونه کله په لنډ او مخفف صورت هم راځي، لکه: ترله د تره لور، تروزی، د ترور زوی.

خاص نوم: د ټاکلو اشخاصو او شيانو نومونو ته خاص نوم وايي. لکه: ميرويس نيکه، کندهار، ننگرهار، مزار شريف.

عام نوم: همنوعو عمومي نومونو ته عام نوم وايي. عام نومونه په خاصو او ټاکلو شيانو دلالت نه کوی. د مثال په توگه سېلاو، ونې، کارگران، بزگران، بازار، ښار، کلي او بانډه.

مفرد نوم: هغه دی چې په يوه او ځانگړي شخص، شي، اوحيوان باندې دلالت وکړي، لکه: ښوونکی، قلم، چرگ، پسه، مشوانی، پياله.

جمع نوم: هغه دی چې له يوه څخه پر زياتو اشخاصو، او شيانو دلالت وکړي، لکه: ښوونکي، قلمونه، چرگان، پسونه، پيالې.

په پښتو ژبه کې که وغواړو مفرد نوم په جمع واړوو په پای کې يې (ونه، آن، يان، گانې (ه) اوږده (ې) څرگنده (ي) ور زياتيږي لکه مېز– مېزونه، سړی، سړي، پسه، پسونه، موضوع، موضوعگانې، بيزو، بيزوگانې، کلا، کلاگانې، ونه ونې، گل، گلان.موچي–موچيان

په پښتو ژبه کې مؤنث نومونه تر جلا قاعدې لاندې په جمع اړول کېږي. هر مفرد مونث نوم چې په (واو يا الف) سره پای ته رسيدلي ده د (گانې په زياتولو سره په جمع بدلېږي، لکه: زانگو، زانگو گانې، غوا، غواگانې، برښنا، برښناگانې.

هغه مفرد نوم چې په پای کې يې څرگنده (ي) وي په زور کې واله (ۍ) سره جمع کېږي، لکه (بدي– بدۍ، خواري– خوارۍ).

مؤنث مفرد نومونه چې په څرگنده (هـ) ختم شوې وي د جمع کولو په وخت کې څرگنده (ه) په اوږده (ې) بدلېږي، لکه (پاڼه– پاڼې، پڼه، پڼې، ښځه، ښځې، چرگه، چرگې.

مأخذ: صديق الله رښتين (ژب ښودنه)

## پنځلسم لوست:

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| گڼه | د مطالبو سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | جرگه | |
| ۲ | د زده کـــــړې پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي موخې | د دې لوست په لوستلو سره به زده‌کوونکي د هېواد د جرگـــې پـــه اړه معلومات ترلاسه کړي.<br>– د جرگې دارزښت په هکله به خبرې وکړای شي.<br>– متن به سم او روان ولولي.<br>– ځو تنه زده‌کوونکي به یوه جرگه جوړه او تمثیل کړای شي.<br>– د سوال او ځواب په توگه به د نویو لغتونو معنا ووایي او جملې به ورته جوړې کړي.<br>– د متن دیالوگ به په دوه کسیزه توگه ترسره کړای شي. | |
| ۳ | د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴ | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | د امکان په صورت کې د ځینو جرگو انځورونه او تصویرونه | |
| ۵ | د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، سوال او ځواب د یادداشت کتابچه | |
| ۶ | د زده کـــــړې او تدریس فعالیتونه | سترې مه شي، حاضري اخیستل او د کورنۍ دندې کتنه | ۶ دقیقې |
| ۷ | د انگېزې رامنځته کول | ښوونکی دې لاندې پوښتنې د تختې پرمخ ولیکي او له زده‌کوونکو څخه دې وپوښتي.<br>جرگه څه ته وايي؟<br>جرگه څه ارزښت لري؟ | ۴ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې متن په لوړ غږ ولولي. | – زده‌کوونکي خپلو تیروتنو ته متوجه کیږي. | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکی دې په څو زده‌کوونکو متن په سم تلفظ ولولي. | – زده‌کوونکي متن ته په دقت گوري او غوږ ورته نیسي. | |
| – ښوونکی له څو زده‌کوونکو څخه غواړي چې د جرگی د اهمیت په هکله په خپله ژبه معلومات وړاندې کړي. | – زده‌کوونکي د متن په لوستلو کې برخه اخلي.<br>– زده‌کوونکي په مینه د جرگې په هکله خپل معلومات وړاندې کوي. | |
| – ښوونکی په څو زده‌کوونکو د جرگې په اړوند یوه موضوع ټاکي چې زده‌کوونکي هغه د ټولگي په مخ کې تمثیل کړي. | څو زده‌کوونکي په تمثیل کې برخه اخلي. | |
| – ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې له یو بل څخه د نویو لغتونو د معنا پوښتنې وکړي. | – زده‌کوونکي یو له بل څخه د نویو لغتونو د معنا پوښتنې کوي او ځوابونه وايي. | |
| – ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې لغتونو ته مناسبې جملې جوړې کړي. | – زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – ښوونکی د جرگې د متن دیالوگ په زده‌کوونکو ترسره کوي. | – دوه دوه زده‌کوونکي د سوال او ځواب په ډول په دیالوگ کې برخه اخلي. | |
| – ښوونکی د لوستل شوي متن څخه زده‌کوونکو ته د جرگې په هکله سپارښتنه کوي.<br>– جرگه څه ته وایي؟<br>– جرگه څه ازرښت لري؟ | – زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده ترسره کوي. | |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**

**– د جرګې له لارې کومې ستونزې هوارېږي؟ د جرګو له لارې د هېواد، کورنۍ، سیاسي، ټـــولنیزې قـــومي، اقتصادي، فرهنګي، او داسې نورې ستونزې هوارېږي.**

**ناغه: څوک چې د جرګې له پریکړو څخه سرغړونه وکړي او د جرګې پریکړې ونه مني، هغه جریمه کیږي.**

**لانجه: شخړه**

**– رېګویدا: آریایي معلوم سرودونه د (ویدي سرودونو) یا یوازې د (ویدا) په نومونو یا دیږي. دغه سرودونه د لرغونتوب او مذهبي موضوعګانو له مخه په څلورو مجموعو یا کتابونو وېشل شوي دي چې تر ټولو لرغونی او مهم کتاب یې ریګویدا(پاک او مبارک علم)نومیږي. دغه کتاب د ادبي درجو، جغرافیایي او نیم تاریخي مثالونو له مخې دهندوکش په سویلې سیموکې یعنې ختیځ افغانستان پورې اړه لري. ریګویدا (۱۰۲۸) سرو دونه لري چې په لسو توکونو (په ویدي اصطلاح ماندولو) ویشل شوي دي. هری برخې ته (کورنۍ کتاب) هـــم ویـــل کیږي.**

**سانسګرت: د هند اروپایي ژبی یا اریایې ژبې څخه یوه ژبه ده.**

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

# جــرگه

جرگه د افغانانو يو ملي او پخوانی دود دی. زموږ په ټولنه کې د ستونزې، شخړې او يا کومې لانجې د پيدا کېــدو پــر مهال د قوم مشران، سپين ږيري او عالمان سره را غونډيږي، خبرې اوبحثونه ورباندې کوي. هرڅوک خپل نظر وايــي د هر چا خبري اورېدل کيږی، تر ډېر فکر او غور وروسته د جرگې له خوا داسې پرېکړه کيږي چې ټولــو تــه د منلــو وړ وي. د جرگې له پرېکړو هېڅوک سرغړونه نشي کولای.

زموږ گران افغانستان يو اسلامي هېواد دی، د جرگو له پلوه ډېره لرغوني او تاريخي سابقه لري. دغــه د ويــاړونو ډک هېواد د تاريخ په اوږدو کې خپلې هر ډول سياسي، اقتصادي او اجتماعي ستونزې د جرگو له لارې هــوارې کــړې دي، چې له نېکمرغه دغه وياړ لاتر اوسه پورې زموږ په خلکو کې خوندي پاتې دی او خپلې هــر ډول ســتونزې او شــخړې په همدغې وياړلي دود باندې له منځه وړي.

الله ﷻ په خپل کتاب قرآن عظيم الشان کې فرمايي، ژباړه: ((تاسو د دوه وروڼو ترمنځ سوله وکــړئ.)) معنــا دا چــې د هغوی د ستونزو د له منځه وړلو لپاره د هغوی ترمنځ روغه جوړه وکړئ. الله ﷻ په بل ځای کې فرمايي: ژبــاړه: ((کلــه چې تاسو کوم کار سرته رسوئ، نو د هغه خبرې د ښه سرته رسولو لپاره له يو بل سره مــشوره وکــړئ او توکــل پــه خدای ﷻ وکړئ.))

افغانانو د تاريخ په اوږدو کې خپلې هر ډول ستونزې او د ژوندانه درنې مسئلې په شورا او گډ فکر ســره هــوارولي. د سانسکريت او رېگويدا په لرغونو سرودونوکې هم د دغسې جرگو يادونه شوې ده. دوی دوه ډوله جرگې درلودې چــې يوه يې وړه جرگه او بله يې لويه جرگه وه. دا دواړه جرگې په خپل ځای کــې د ډېــر اهميــت او ارزښــت وړ دي. د همدغو جرگو دود او دستور لاتر اوسه زموږ په گران هېواد کې ژوندی دی او زموږ زياتې ستونزې او شخړې د جرگــو له لارې حل کيږي. په وړو جرگو کې د کلي، کور، سيمې آن د ولسوالۍ خلک برخه اخلي او خپلې ستونزې پــه گــډ فکر له منځه وړي. د جرگو له پرېکړو څخه هېڅوک سرغړونه نشي کولای او که چېرې څوک سرغړونه وکړي، هغــه ناغه کيږي.

همدا راز په لويو جرگو کې د ټول هېواد مشران، سپين ږيري، او عالمان گډون کوي او د هېواد ستونزې او شخړې پــه گډ او واحد نظر سره حل کوي. زموږ په هېواد کې لومړنۍ لويه جرگه د ميرويس خان هوتــک پــه وخــت کــې پــه ۱۷۰۵م کال د کندهار له زاړه ښار نه لېرې په کوکران کلي کې جوړه شوه. په دغه جرگه کې پرېکړه وشــوه چــې د يرغلگرو په وړاندې دې خپله ميرويس خان له خپل تدبير څخه کار واخلي. همداسې نورې ډېرې جرگې هم زمــوږ پــه هېواد کې ترسره شوي او لاتر سره کيږي. لنډه دا چې جرگه د يوه هېواد او خلکو د ويــاړونو او ارزښــتونو ملــي دود دی، نو لازمه ده چې موږ افغانان په خپل ملي دود او دستور باندې و وياړو او ورته په درنه سترگه وگورو.

**شپاړسم لوست:**

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| ګڼه | د مطالبو سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | کابل | |
| ۲ | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي موخې | د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>– کابل ښار به د هېواد یو فرهنګي او کلتوري مرکز په توګه وپېژني.<br>– متن به سم او روان ولولي.<br>– د نویو لغتونو معنا به زده ا و په جملو کې به یې وکاروي.<br>– زده‌کوونکي به د کابل په هکله په خپل منځ کې خبرې اترې وکولای شي.<br>– زده‌کوونکي به په ټولګي کې د نورو ملیتونو له زده‌کوونکو سره د مرستې روحیه پیاوړې کړي.<br>– زده‌کوونکي به د خپلو ټولګیوالو په وړاندې د کابل په هکله په پښتو ژبه خبرې وکړای شي.<br>– د متن په لوستلو، لیکلو او خبرو کولو کې به په علاقمندۍ فعاله ونډه واخلي.<br>_ د متن د وروستۍ برخې فعالیتونه به سرته ورسولای شي. | |
| ۳ | د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه (محاوره) په یوازې توګه خبرې...) | |
| ۴ | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | د کابل د تاریخي او مهمو ځایونو انځورونه، کتابتون، مجلې او د کابل ښار په هکله لیکنې، د مفرد او جمع کلمو لیکلي کارتونه. | |
| ۵ | د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، د سوال او ځواب (دیالوګ) په توګه ارزونه د یادداشت کتابچه. | |
| ۶ | د زده کړې او تدریس فعالیتونه | ستړي مه شي، حاضري اخیستل او د کورنۍ دندې کتنه | ۶ دقیقې |
| ۷ | د انګېزې رامنځته کول | – د افغانستان د پلازمېنې (پایتخت) په هکله څه معلومات لرئ؟<br>– کابل چېرته پروت دی؟<br>– کابل د افغانستان د څه شي نښه ده؟ | ۴ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی لوست په لوړ مناسب غږ لولي. | – زده‌کوونکي متن ته گوري او پاملرنه کوي.<br>– زده‌کوونکي په چوپتیا سره متن لولي او د ستونزو په باب له ښوونکي پوښتنه کوي. | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکی زده‌کوونکي په ډلو وېشي، سپارښتنه کوي چې متن په چوپتیا ولولي او ستونزې دې په نښه کړي او ښوونکی څارنه کوي. | – زده‌کوونکي خپل نومونه په خبرو اترو کې کاروي او نور غوږ نیسي. | |
| – ښوونکی په وار سره دوه دوه زده‌کوونکې د ټولگیوالو مخې ته راغواړي او سپارښتنه کوي چې خپل نومو نه په خبرو اترو کې وکاروي. ښوونکی مرسته کوي. | – زده‌کوونکي په وار سره د کابل په باب خبرې کوي. | |
| – ښوونکی په وار سره یو یو زده‌کوونکی د ټولگي مخې ته راغواړي او سپارښتنه کوي چې یوه یا دوه دقیقې د کابل په هکله خبرې وکړي. | – زده‌کوونکي همدغه فعالیت په کتابچو کې ترسره کوي. | |
| – ښوونکی درې تنه زده‌کوونکي د ټولگي مخې ته راغواړي او لارښوونه کوي چې یو زده‌کوونکی له بل څخه د متن د کلمو د معنا کولو پوښتنه وکړي، دویم دې معنا او دریم دې په جملو کې وکاروي، خپله دې مرسته ورسره وکړي. | – زده‌کوونکي په وار سره تختې ته راځي او یوه (ی) لرونکې کلمه لیکي. | |
| – ښوونکی په وار سره زده‌کوونکي تختې ته راغواړي او ورته وایي چې داسې یوه کلمه ولیکي چې د پښتو (ی) گانو څخه یوه یې په کې کارول شوې وي. | | |
| – ښوونکي د کابل د لوست لنډیز په روښانه ټکو او سمو الفاظو زده‌کوونکو ته وایي او د درس لنډیز بیانوي. | – زده‌کوونکي په دقت سره د لوست لنډیز ته غوږ نیسي. | |
| کورنۍ دنده: ښوونکی زده‌کوونکو ته سپارښتنه کوي چې د افغانستان د ټولو ولایتونو او د هغو د مرکزونو نومونه په خپلو کتابچوکې ولیکي. | – زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده ترسره کوي. | |

| | |
|---|---|
| **د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**<br>– پلازمينه (پايتخت) هغه ځای چې د يو هېواد پاچا يا ولسمشر په کې اوسېږي او ټول هېواد اداره کوي.<br>– دوبی (اوړی او يا تابستان) په دوبي کې مېوې او دانې پخيږي.<br>– محصولات (مېوې، دانې، لاسي جوړ شوې شيان او نور دي.)<br>– پارلمان ( شورا، قانون جوړونکې شورا) زموږ د هېواد پارلمان له دوو مجلسونو (ولسي جرگې او مشرانو جرگې) څخه جوړ شوی دی. | |
| **د فعاليتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه**<br>کابل چېرته پروت دی؟<br>ځواب: کابل د ميدان وردگ، لوگر، ننگرهار، لغمان، کاپيسا، پروان ترمنځ پـروت او د دغـو ولايتونو سره گډه پوله لري.<br>کابل د پلازمينې په توگه څه ارزښت لري؟<br>کابل په نړيواله کچه سياسي، مذهبي، علمي، فرهنگي او اقتصادي مرکز دی. | |

## ښوونکي ته اضافي معلومات:

### کابل

کابل زموږ د هېواد له ډېرو لرغونو او مهمو ښارونو څخه یو ښار دی، یا په بل عبارت کابل هغه نوم دی چې د لرغونو پېړیو راهیسې د زړې آسیا د جغرافیې او تاریخ په پاڼو کې ځای لري. دا نوم هغه ښار ته اطلاق کېږي چې د همېشه لپاره مقتدرو پاچاهانو د تمدن او سلطنت مرکز و. که څه هم تر اسلام دمخه د کابل سیاسي موقعیت څرګند نه دی، خو دومره معلومه ده چې کابل ډېرې پېړۍ حتی د مقدوني سکندر له عصر څخه دمخه هم موجود و او د سکندر مؤرخانو په تکراري او پرله پسې ډول له هغه څخه یادونې کړې دي.

کابل کاسې ته ورته جوړښت لري، شاوخوا یې غرونه دي، له همدې غرونو او لوړو ځایونو څخه اوبه رابهېږي او په کابل کې ټولېږي.

که د کابل کاسې ته په یوه لنډ نظر وکتل شي، نو لیدل کېدای شي چې په شمال کې یې د خواجه رواش سیمه، په لویدیځ کې یې د بیني حصار سیمه او په جنوب ختیځ کې یې د حشمت خان د کلا سیمه پرته ده. هغه اوبه چې له لوړو برخو څخه رابهېږي، د وتلو لار نه لري او په بېلابېلو کاسو کې راټولېږي چې اوس هم د کابل په شاوخوا کې دغه نښې نښانې لیدل کېږي. څرګنده ده چې په پخوانیو زمانو کې د سیندونو لوري د کوچیانو د تګ راتګ طبیعي لارې وې. کلي او ښارونه د دغو سیندونو په غاړه جوړ شوي وو.

کابل زموږ دګران هېواد یو لرغونی ښار او زموږ د هېواد مرکز دی. په کابل ښارکې د حکومت ټول وزارتونه شته دي. د افغانستان ملي شورا هم په کابل کې موقعیت لري. هغوی قانونونه جوړوي او د هر ډول ستونزو دله منځه وړلو لپاره کارکوي. حکومتي چارواکو او د نړۍ د موسسو لخوا بنیادي کارونه لکه د ښوونځیو جوړول، د ملي اردو پیاوړي کول، د ملي پولیسو روزنه، مسلکي ښوونکو لپاره پرله پسې سیمینارونه، ورکشاپونه او نور کارونه پر مخ بیول کیږي. په دغه لرغوني ښارکې اوس څه د پاسه(۱۸۶) ښوونځي شته دي. همداراز په کابل کې اوس څه د پاسه (۲۶۳)لومړني، منځني او ثانوي ښوونځي شته چې له نیکمرغه ټول ښوونځي فعال او د هېواد زده‌کوونکي خپلې زده کړې پکې تر سره کوي. برسره پردې په دغه ښار کې دولتي او شخصي پوهنتونونه موجود دي. دغه ښکلی ښار کې خصوصي پروژې چې د خلکو په هڅو او پانګې اچونې جوړې شوي او خپل بنیادي کارونه، لکه: د ودانیو جوړول د سړکونو او پلونو جوړول او نور بنسټیز کارونه پر مخ بیایي.

په دې لرغوني ښارکې د پرمختللې ټکنالوژۍ ډول ډول وسیلې، لکه: کمپیوټر، فکس، انټرنټ او نور ایجاد او فعاله شوي دي چې له د غو پر مختللو وسایلو څخه اوس زموږ خلک په تېره بیا، دولتي او شخصي ادارې او موسسې ګټه اخلي. په اوسني وخت کې د رسمي او غیر رسمي ادارو ځینې دندې او کارونه په کمپیوټر تر سره کیږي. همدارنګه د پوهنې وزارت په هڅو او کوښښونو سره د هېواد په یو شمېر ښوونځیو کې د ښې زده کړې لپاره کمپیوټرونه او نور درسي وسایل ورکړل شوي دي. چې د نوموړو سیمو له جملې څخه یو هم د کابل ښار دی. اوس د دې ښار یو شمېر ښوونځي له کمپیوټر څخه برخمن او زده‌کوونکو ته د زده کړې په خاطر ویشل شوي دي. څرنګه چې کابل زموږ د هېواد یو لرغوني ښار دی نو د پورتنیو لاسته راوړنو تر څنګ په دې ښایسته ښارکې د ځوانانو لپاره ادبي او فرهنګي ټولنې، د آزادو رسنیو مرکزونه او نور جوړې شوي دي. زموږ خلک په تېره ځوانان کولای شي چې په دغو ټولنو کې فعاله برخه ولري. ادبي او فرهنګي ټولنې د یوه هېواد د پرمختګ لپاره یوه ضروري برخه ده او ددې تر څنګ په دغه ښار کې اوس څه د پاسه د تلویزیون (۱۱) چینلونه فعال او خپل پروګرامونه خپروي، همدارنګه په دې ښار کې د خوړو او وسایلو جوړولو شخصي کار خاني جوړې شوي دي چې له نیکه مرغه زیاتره خواړه په دغه ښار کې تولید او جوړیږي چې زموږ هېوادوال ترې ګټه اخلي.

# اوولسم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| گڼه | د مطالبو سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | غلې، مېوې (خبرې اترې) | |
| ۲ | د زده کړې پوهنیزې، مهـــارتي، ذهنیتـــي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>– د خپل هېواد غلې دانې او مېوې به وپېژني.<br>– د غلو دانو او مېوو ګټې او ارزښت به بیان کړای شي.<br>– متن به سم او روان ولولي.<br>– د نویو لغتونو معنا به زده کړي او په جملو کې به یې وکاروي.<br>– د متن په خبرو اترو کې به فعاله ونډه واخلي او پښتو به زده کړي.<br>– د متن لنډیز به په خپله ژبه ووایي.<br>– پوښتنو ته به ځوابونه د دیالوګ په بڼه ورکړای شي.<br>– د متن په سم لوستلو، سم لیکلو او سمو خبرو کولـــو کـــې بـــه پـــه علاقمندۍ سره فعاله ونډه واخلي.<br>_ د لوست د پای فعالیتونه به په خپلواک ډول سرته ورسولای شي. | |
| ۳ | د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه (محاوره) په یوازې توګه خبرې...) | |
| ۴ | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | د امکان په صورت کې د ځینو غلو، دانو او مېوو انځورونه او عکسونه. | |
| ۵ | د ارزونـــې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، لیکلي ارزونه، د سوال اوځواب (دیالوګ) په توګه ارزونه، د یادداشت کتابچه. | |
| ٦ | د زده کـــــړې او تدریس فعالیتونه | ستړي مه شي، د حاضري اخیستل او په بېلابېلو بنو د کورنۍ دندې کتنه. | ٦ دقیقې |
| ۷ | د انګېزې رامنځتـــه کول | – آیا ویلای شئ چې غله او مېوه څه شی دي؟<br>– غلې، دانې او مېوې زموږ بدن ته څه ګټه رسوي؟<br>– آیا له خوراک او څښاک پرته انسان ژوندی پاتې کېدای شي؟ | ۴ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی لوست په لوړ مناسب غږ لولي.<br>- ښوونکی سپارښتنه کوي چې زده‌کوونکي لوست له ځان سره په پټه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې په نښه کړي.<br>- ښوونکی لوست په څو زده‌کوونکو په لوړ غږ لولي او په لوست کې ورسره مرسته کوي.<br>- ښوونکی غواړي چې څو زده‌کوونکي په خپله خوښه د ټولګي په مخکې د غلو، دانو او مېوو د ګټو او ارزښت په هکله خبرې وکړي.<br>- ښوونکی دوه دوه زده‌کوونکي هڅوي چې د ټولګي په مخکې لومړۍ مرکه، دویمه مرکه، دریمه مرکه د سوال او ځواب په توګه په وار سره ترسره کړي. ښوونکی دې د نیمګړتیا په صورت کې مرسته وکړي.<br>- ښوونکې دې درې درې زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته را وغواړي یو زده‌کوونکی له بل څخه د کلمې معنا وپوښتي او دریم زده‌کوونکی دې هماغې کلمې ته مناسبه جمله جوړه او د تختې پر مخ دې ولیکي.<br>- ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې د لوست د متن لنډیز په خپله ژبه ووايي.<br>- ښوونکی دې زده‌کوونکو ته له هر لوستل شوی درس څخه کورنۍ دنده وسپاري، مثلاً زده‌کوونکي دې په خپلو کورونو کې د مور او پلار په مرسته په هېواد کې د غلو، دانو او مېوو نومونه ولیکي او په بله ورځ دې هغه په ټولګي کې نوروته ووايي. | - زده‌کوونکي لوست ته ګوري او په دقت غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي لوست په پټه خوله لولي، ستونزمنې کلمې په نښه ا و له ښوونکي څخه پوښتنه کوي.<br>- نور زده‌کوونکي لوست ته ګوري او غوږ نیسي.<br>- څو زده‌کوونکي په وار د غلو دانو ا و مېوو د ګټو او ارزښت په هکله خبرې کوي.<br>- د هرې ډلې دوه دوه زده‌کوونکي د سوال او ځواب په مرکو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي کلمې معنا او د تختې پر مخ ورته جملې جوړوي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې د لوست د متن لنډیز په خپله ژبه وايي.<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سرته رسوي. | ۳۵<br>دقیقی |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**

اینځر: انجیر

**د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه**

افغانستان څه ډول هېواد دی؟

ځواب افغانستان یو کرنیز هېواد دی. زیاتره خلک یې په کرنه، مالداري او باغداری بوخت دي.

## ښوونکي ته اضافي معلومات:

### غلې، دانې او مېوې

زموږ هېواد متعدله هوا لري، هر ډول غلې، دانې او مېوې پکې کيږي او ښه حاصل کوي. تر ټولو دمخـــه بايـــد لـــومړی غلې، دانې او مېوې په مرتب ډول وپېژنو او د ګټو او ارزښت په هکله يې لنډې څرګندونې ترسره شي.

۱ – غلې دانې: زموږ په هېواد کې ډېرې غلې کرل کيږي او ښه حاصل کوي. د غلو په ډله کې غنم، جـــوار اوربـــشې، وريجې، لوبيا، نخود، مې او نور راځي او د منې او ژمي په فصلونو کې کرل کيږي، جوار هم د هېواد په زيـــاتره ســـيمو کې کرل کيږي. د زياترو خلکو خواړه د غنمو ډوډۍ او د جوارو سوکړک دی. ډوډۍ د خلکـــو ورځنـــۍ اړتيـــا ده. د هرې کورنۍ په دستر خوان باندې ډوډۍ موجوده وي. سابه او نور خواړه پرته له وچې ډوډۍ نه خـــوري او نـــه خونـــد کوي. په ډوډۍ کې ډول ډول ويټامينونه شته دي چې د انسان بدن پياوړی کوي تقريباً (۱۷) ويتامينونه په غنمـــو کـــې موجود دي.

د غنمو له اوړو څخه خلک ډول ډول کلچې او نور خواړه خواړه پخوي او ترې ګټه اخلي.

لکه څنګه چې مو مخکې وويل چې زموږ هېواد يو کرنيز هېواد دی د غنمو، جوارو د کرنې تر څنګ دانـــې هـــم کـــري لوبيا، چنې، نسک، مشنګ، مې، وريجې او نور هم د هېواد په ځينو سيمو کې کرل کيږي او خلک له دغو دانـــو څخـــه خپلې ورځنۍ اړتياوې پوره کوي.

د دانو خوړل هم د انسان د بدن يوه مهمه اړتيا ده. دانې ډول ډول ويټامينونه، پروټينونه، منرالونه او نورې انـــرژۍ لـــري چې خوړل يې بدن پياوړی او قوی کوي. دانې چې زموږ د ورځنې ژوند مهم خواړه دي، د نه رسېدو په صورت کې يـــې بدن کمزوری کيږي او له فعاليت څخه لوېږي. هغه کورنۍ چې له دغو خوړو څخه ډېره ګټه اخلـــي، د هغـــوی بـــد ن پياوړی او خپل ورځني کارونه په سمه توګه ترسره کولای شي. له دانو څخه هم ډول ډول خوندور خـــواړه پخيـــږي او ترې ګټه اخيستل کيږي.

مېوې: مېوې زموږ د هېواد له مهمو پيداوارو څخه دي. په زياترو سيمو او ولايتونو کې پيـــدا کېـــږي. دغـــه ښـــکلی او سمسور هېواد خورا مشهورې مېوې لري.

انګور، انار، منې، ناک، اينځر، بادام، پسته، خټکي، هندوانې، توتان، آلوبالو، ګـــيلاس، شـــفتالو او نـــور د دې هېـــواد خوندورې مېوې دي. انګور په کابل، لوګر، پروان، کوهدامن، غزني، کندهار، هرات، فارياب او نورو ځايونو کـــې ډېـــر پيدا کيږي او خلک يې په روزنه بوخت دي. د کندهار، فراه، سمنګان او تګاب انار ډېر خوندور او مشهور دي. خټکـــي د هېواد په شمالي ولايتونو او فراه کې ډېر کرل کيږي او زياتره خلک يې په کرلو بوخت دي.

د مېوو خوړل هم انسان ته ضرور دي. مېوې هم ډول ډول ويټامينونه لري. هره مېوه ځانته ويټامين لري. د مېوو خـــوړل د انسان بدن پياوړی کوي او له بېلا بيلو ناروغيو مخنيوی کوي. د مثال په توګه: انار د انسان ځيګرته ګټه رسوي، وينـــه تصفيه کوي. منه زړه ته قوت وربښي، بيهی معده پياوړې کوي. هندوانې د انسان د پښتورګو په روغتيا کې اغېزه لـــري.

موږ شکر الحمدالله مسلمانان يو. بايد د خدایﷻ په دغه لوی نعمت هميشه شکر وکـــاږو او د دغـــو نعمتونـــو پـــه لا زياتولو کې هڅه او زيار وباسو. په خپل وس مېوه لرونکې ونې کېنوو او په ژوند کې ترې سمه او معقوله ګټه واخلو.

ښاغلی ښوونکيه: د غلو، دانو، او مېوو مفرد او جمع نومونه په زده‌کوونکو مشق او تمرين کړئ.

د ځينو مېوو مفرد بڼه:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| منه | منې |
| خټکی | خټکي |
| هندوانه | هندوانې |
| زردالو | زردالان |

زده‌کوونکي تشويق او وهڅوئ چې ديالوګ د سوال او ځواب په توګه په دوه کسيزه ډول ترسره کړي. د ديالوګ ګټـــه دا ده چې زده‌کوونکي د دغه مهارت په ترسره کولو سره ژبه زده کوي او د خبرو کولو جرأت يې زياتيږي.

**اتلسم لوست:**

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| گڼه | د مطالبو سرليکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | پېژندګلوي (خبرې اترې) | |
| ۲ | د زده کړې پوهنيزې، مهارتي، ذهنيتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>– د پېژندګلوۍ د ګټو او ارزښت په هکله به معلومات پيدا کړي.<br>– د پېژندګلوۍ د اهميت په باب به نورو ټولګيوالو او د کورنۍ غړوته لارښوونې وکړي.<br>– د متن ستونزمنې برخې به پيدا او حل کړي.<br>– متن به سم او روان ولولي.<br>_ په پښتو ژبه به يو بل ته د ځان په ورپېژندلو پوه شي.<br>– د ټولګيوالو په مخکې به يو بل ته ځانونه وروپېژني.<br>– د متن نيمګړې جملې به د مناسبو کلمو په کارولو سره بشپړې کړي.<br>– د متن لنډيز به په پښتو ژبه وويلی شي.<br>_ د لوست د پای فعاليتونه به په خپلواک ډول سرته ورسولای شي. | |
| ۳ | د تدريس لارې | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه (محاوره) په يو کسيزه توګه ځان معرفي کول. | |
| ۴ | د تدريس وسيلې او مرستندوی توکی | د دويمې ژبې د زده کړې لپاره ليکلي کتابونه، د ارزيابی کتابچه. | |
| ۵ | د ارزونې لارې او وسيلې | يو کسيزه ارزونه، ډله ييزه ارزونه، شفاهي او ليکلي ارزونه، سوال او ځواب. | |
| ٦ | د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سترې مه شې، د حاضرۍ اخيستل او په بېلابېلو بڼو د کورنۍ دندې کتنه او اصلاح. | ٦ دقيقې |
| ۷ | د انګېزې رامنځته کول | – پېژندګلوي څه ته وايي؟<br>– تاسو د خپلو نږدې ملګرو د کورنيو د پېژندګلوي په باب څه معلومات لرئ؟<br>– دوستي او پېژندګلوي څه ګټې لري؟ | ۴ دقيقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| – ښوونکی دې د پېژندګلوۍ لوست په مناسب غږ ولولي.<br>– ښوونکی په وار سره په څو زده‌کوونکو متن لولي.<br>– ښوونکی سپارښتنه کوي چې د څو شپږو لپاره متن له ځان سره ولولي او ستونزمنې کلمې يې په نښه کړي.<br>– ښوونکی په وار سره دوه دوه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي چې يو بل ته خپل ځانونه وروپېژني، د نيمګړتياوو په وخت کې ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>– ښوونکی دې کوښښ وکړي چې د متن درې واړه مرکې په ټولو زده‌کوونکو تکرار او تمرين کړي.<br>– ښوونکی دې په وار سره څو زده‌کوونکي د تختې مخې ته را وغواړي او ورته دې ووايي چې يوه يوه جمله پر تخته وليکي.<br>– ښوونکی دې زده‌کوونکو ته ووايي چې په کور کې په خپلو کتابچو کې په خپله خوښه يوه يوه مرکه په پښتو ژبه وليکي. | – زده‌کوونکي لوست ته پوره پاملرنه کوي.<br>ـ زده‌کوونکي متن له ځان سره لولي.<br>– زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سمه کړنه کوي.<br>– زده‌کوونکي يو بل ته خپل ځانونه ورپېژني.<br>ـ دوه زده‌کوونکي د مرکې لپاره د ټولګي مخې ته راځي.<br>– زده‌کوونکي په مرکو کې فعاله ونډه اخلي.<br>– نور زده‌کوونکي همدغه دنده په خپلو کتابچوکې ترسره کوي. | ۳۵ دقيقې |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

انسان د ټولنې غړی دی، په ټولنه کې ژوند کوي، باید یو له بل سره وپیژني. د یو بل د نوم د اصلي او فعلي استوګنځي د ځای، کار او ژوند پر څرنګوالي باندې پوهېدلو ته پېژندګلوي وايي.

له یو بل سره پېژندګلوي د انسان په ژوند کې آسانتیاوې راولي. د مثال په توګه: موږ یوه ورځ له یو چا سره په پوهنتون، وزارت، مارکیت، بازار، سفر او نورو ډېرو ځایونو کې مخامخ کیږو، د بحث او پیژنگلوی په بهیر کې له یو بل سره آشنا او دوستان کیږو، که چېرې هماغه شخص یو وخت کوم ځای کې وګورو، ستړي مه شي ورسره کوو. که دریم ځل یې وګورو، ښه روغبړ ورسره کوو او پېژندګلوي ورسره پیدا کوو. که همدا کتنه دوام ومومي، نو ورسره دوستان کیږو.

په ټولنه کې پېژندګلوي لاندې ګټې او ارزښتونه لري.

۱- په پېژندګلوۍ سره زموږ دوستان زیاتیږي.

۲- د اړتیا او یا کومې واقعې په پېښېدو سره کولای شو چې له خپلو دوستانو څخه مرسته وغواړو.

۳- ښه او رښتیني دوستان په سخته ورځ پکاریږي.

۴- د ښو دوستانو په پیداکولو د درنښت او عزت خاوندان ګرځو.

۵- ښه او هوښیار دوستان سړي ته د ژوند او ستونزو د لیرې کولو په خاطر ښې لارښوونې کوي.

٦- د ښه او هوښیار دوست په درلودو سره کولای شو چې شخصي کارونه، لکه: دوکانداري، سوداګري او نور... په سلا او مشورې پرمخ بوځو آن د خپل ژوند لوری معلوم کړو.

۷- د ښو او په زړه پورې دوستانو په پیداکولو سره دوې کورنۍ نېکمرغه کیږي.

ښاغلی ښوونکی دې زیار وکاږي چې په زده‌کوونکو باندې په یوکسیزه او یا دوه کسیزه توګه د سوال او ځواب د پېژندګلوۍ مهارتونه مشق اوتمرین کړي او زده‌کوونکي وکولی شي، په شفاهي توګه ځانونه نورو ته وروپیژني. دا پېژندګلوي تاسو ښاغلی کولی شئ چې په دوه کسیزه او یا یو کسیزه توګه په زده‌کوونکو باندې د ټولګي په مخکې ترسره کړئ. د پېژندګلوۍ اهمیت او ارزښت په دې کې دا دی چې له یوې خوا زده‌کوونکي پښتو ژبه زده کوي او له بلې خوا به دوی د خبرو کولو جرأت پیدا کړي.

## نولسم لوست:

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| وخت | موضوعګانې | د مطالبو سرلیکونه | ګڼه |
|---|---|---|---|
| | مېرمن الایي | د لوست موضوع | ۱ |
| | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>– د هېواد نومیالۍ مېرمن الایي به وپېژني.<br>– د مېرمن الایي په هکله به نوروته معلومات ورکړي.<br>– متن به سم او روان ولولي.<br>– د متن نوي لغتونه به معنا او په مناسبو جملو کې وکاروي.<br>– د متن د موضوع په اړه به د ټولګي په مخکې لنډې مرکې وکړي.<br>– د متن لنډیز به نورو ته ووايي.<br>– د مېرمن الایي له ادبي خدمتونو او ملي مبارزو څخه به په خپل ورځني ژوند کې ګټه واخلي.<br>– د متن په سم لوستلو، سم لیکلو او سمو خبرو کولو کې به په علاقمندۍ فعاله ونډه واخلي.<br>_ د متن د وروستۍ برخې فعالیتونه به سرته ورسولای شي. | د زده کـــــــړې پوهنیزې، مهارتي، ذهنيتي موخې | ۲ |
| | لوستل، لیکل، په یوازې توګه د لوست په مطلب خبرې کـــول. ســـوال او ځواب، ګروپي کار. | د تدریس لارې | ۳ |
| | د نویو لغتونو لیکلي کارتونه او د امکان په صورت کې د ځینو اتلو مېرمنو تصویرونه او یاداشت کتابچه. | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | ۴ |
| | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، یو کسیزه ارزونه، د سوال او ځواب ارزونه. | د ارزونې لارې او وسیلې | ۵ |
| ٦ دقیقې | ستړي مشي، دحاضري اخیستل، او په بېلابېلو بڼو د کورنۍ دندې کتنـــه او اصلاح. | د زده کـــــــړې او تدریس فعالیتونه | ٦ |
| ۴ دقیقې | – آیا د مېرمن الایي نوم مو اورېدلی دی؟<br>– ستاسو په فکر د مېرمن الایي په ژوند لیک باندې پوهېدل موږ ته څه ګټه لري؟ | د انګېزې رامنځته کول | ۷ |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې متن په مناسب غږ ولولي. | – زده‌کوونکي متن ته ګوري او په دقت غوږ نيسي. | ۳۵ دقيقې |
| – ښوونکی دې متن په زده‌کوونکو باندې وار په وار د ټولګي په مخکې ولولي او د ستونزمنو کلمو په تلفظ او لوستلو کې دې پوره مرسته وکړي. | – زده‌کوونکي په وار متن د کتاب له مخې لولي او د ستونزمنو کلمو سم تلفظ ته متوجه کېږي. | |
| – ښوونکی د مېرمن الايي د ادبي خدمتونو او ملي مبارزو په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي. | – زده‌کوونکي د مېرمن الايي په اړه معلومات زده کوي. | |
| – ښوونکی دې څو زده‌کوونکي په وار د ټولګي مخې ته را وغواړي چې د مېرمن الايي په هکله نورو ته معلومات ورکړي. | – زده‌کوونکي په دغه فعاليت کې فعاله ونډه اخلي. | |
| – ښوونکی دې دوه، دوه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته را وغواړي چې د مېرمن الايي په هکله د سوال او ځواب فعاليت د ډيالوګ په ډول ترسره کړي. خپله ښوونکی دې د دوی ژبني او ګرامري نيمګړتياوې په ګوته او اصلاح کړي. | – زده‌کوونکي په ډيالوګ کې برخه اخلي او په دې ډول د محاورې دغه فعاليت په ښه توګه ترسره کوي. | |
| – ښوونکی دې د کلمو ليکلي کارتونه چې مخکې يې جوړ کړي دي د مېز په سر کېږدي او له هرې ډلې څخه دې دوه دوه زده‌کوونکي راوغواړي. يو زده‌کوونکی يو کارت پورته کړي کلمه دې معنا کړي او بل زده‌کوونکی دې هغه پر تخته وليکي او په مناسب جمله کې يې وکاروي. ښوونکی دې د نيمګړتيا په صورت لازمه مرسته ورسره وکړي. | – زده‌کوونکي په دغه فعاليت کې ونډه اخلي. | |
| – ښوونکی دې زده‌کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې په کورونو کې د خپلې خوښې په موضوع کې يوه مرکه وليکي او په بله ورځ يې په ټولګي کې تمثيل کړي. | – زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سرته رسوي. | |

| | | |
|---|---|---|
| **د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**<br>مېرمن الايي دجلال الدين لور او د بايزيد روښان لمسۍ وه.<br>لمسۍ– مفرد مونث لپاره کارول کيږي<br>لمسی– مفرد مذکر لپاره کارول کږي<br>د لمسۍ جمع لمسيانې دي<br>د لمسي جمع لمسيان دي | | |
| **د فعاليتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه**<br>– مېرمن الايي د هندي مغولو په ضد کوم قومونه راټول او هغوی ته يې د څه شي بلنه وکړه؟<br>ځواب: مېرمن الايي اپريدي او اورکزي قومونه را ټول او د هندي مغلو لښکرو د له منځه وړلـــو لپاره يې ورته لارښوونې وکړې.<br>– مېرمن الايي له خپل وصيت سره سم چېرې او د چا ترڅنګ خاورو ته وسپارل شوه؟<br>ځواب: د مېرمن الايي مړی تيراته راوړل شو او له وصيت سره سم يې د خپل مېړه احداد تر څنګ خاورو ته وسپارل شوه.<br>– مېرمن الايي خپلې زده کړې له چا څخه کړې وې؟<br>ځواب: خپلې زده کړې يې له خپل پلار څخه کړې وې. | | |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**مېرمن الايي**

د پښتو ژبې ادبياتو په تاريخ کې زموږ د هېواد د ډېرو نوميالیو او پوهو ښځو نومونه په زرينو کرښو ليکل شـــوي دي او د هغوی د علمي کارونو او لاسته راوړنو ياد زموږ د هر افغان په زړه کې تازه پاتې دی. د دغو پښتني نوميالیو مېرمنو پـــه لړ کې يوه هم مېرمن الايي ده.

دغه پښتنه مېرمن د ملي مبارز او عالم شخصيت بايزيد روښان د زوی جلال الدين لور وه چې د روښان لمـــسۍ کېـــده. دغه اتله مېرمن د شيخ عمر د زوی احداد مېرمن وه.

مېرمن الايي خپلې ديني او علمي زده کړې له خپل پلار جلال الدين څخه کړې وې. د علم، پوهې، فضيلت او د غـــوره عالي کړو وړو او اخلاقو خاونده وه.

مېرمن الايي د روښانيانو د نهضت د ملي مبارزو د لارې اوفکر پيروه وه. د هېواد دښمنانو ته يې په کلکـــه ځوابونـــه او ګوزارونه ورکړي دي.

مېرمن الايي په خپل ژوند کې د مغولي ګورګاني تېري کوونکو د حکومت پرضد د روښانيانو د اسلامي او ملـــي مبـــارزو په لړ کې د يوې رښتينې مېرمنې په توګه خپلې هڅې او مبارزې پرمخ بيولي دي. په دغه لاره کې يې د اسلام او د هېـــواد دښمنانو ته نه هېرېدونکي درسونه ورکړي دي.

په ۱۰۵۳ هجري قمري کال کې د دغې نوميالۍ مېرمنې خاوند د مغولو له لاسه په شهادت ورسېده. هغـــه مهـــال چـــې هندي مغولي واکمنان د خيبر له لارې د کابل په لور روان وو، نو دغې بېدارې او زړه ورې مېرمنـــې د پـــښتنو مـــشهور قومونه، اپريدي او اورکزي سره راغونډ کړل او هغوی ته يې د ګورګاني لښکرو د له منځه وړلـــو پـــه اړه مـــشورې او لارښوونې وکړې. زموږ هېوادپالو خلکو د دغې نوميالۍ مېرمنې په لارښوونې د ګورګاني لښکرو مقابلې ته خپل ځانونـــه چمتو کړل. د دواړو په منځ کې سخته جګړه ونښته. د دغې جګړې په نتيجه کې دښمن ته سخته ماته ورپه برخـــه شـــوه او پښتانه بريالي شول.

د مېرمن الايي د مرګ نېټه په دقيقه توګه څرګنده نه ده. له خپل وصيت سره سم يې مړی تيرا ته راوړل شـــو او د خپـــل مېړه احداد د قبر ترڅنګ خاورو ته وسپارل شوه.

**شلم لوست:**

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| وخت | موضوعګانې | د مطالبو سرليکونه | ګڼه |
|---|---|---|---|
| | صفت او ډولونه يې | د لوست موضوع | ۱ |
| | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>− صفت او ډولونه به يې وپېژني.<br>− صفت او د صفت ډولونه به تعريف کړای شي.<br>− متن به سم او روان ولولي.<br>− د صفت کلمې به په خپلو خبرو اترو او ليکنو کې وکاروي.<br>− د نويو لغتونو معنا به زده کړي او په جملو کې به يې وکاروي.<br>− په جملو او متنونو کې به د صفت کلمې پيدا کړای شي.<br>− پښتو ژبه به روانه زده او خبرې پرې وکړای شي.<br>− د متن د وروستۍ برخې په فعاليتونو کې به فعاله ونډه واخلي.<br>− په محاورو کې به په علاقمندۍ سره برخه واخلي. | د زده کــــــړې پوهنيزې، مهـــارتي، ذهنيتي موخې | ۲ |
| | لوستل، ليکل، په يوازې توګه د لوست په مطلب خبرې کول، پـــه دوه کسيزه ډول په محاوره کې برخه اخيستل. | د تدريس لارې | ۳ |
| | د صفت کلمو ليکلي کارتونه | د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي | ۴ |
| | شفاهي ارزونه، ليکلې ارزونه، يو کسيزه ارزونه، د ســـوال او ځــواب ارزونه | د ارزونــــې لارې او وسيلې | ۵ |
| ٦ دقيقې | ستړي مه شي، د حاضرۍ اخيستل او په بېلابېلو بڼو د کورنۍ دندې کتنه او اصلاح. | د زده کــــــړي او تدريس فعاليتونه | ٦ |
| ۴ دقيقې | − آيا تاسو د صفت په اړه معلومات لرئ؟<br>− آيا کولی شئ د صفت څو کلمې له ياده ووايئ او بيا يې پـــر تختــــه وليکئ؟<br>− د ژبې د ګرامر زده کړه څه ګټه لري؟ | د انګېزې رامنځتــــه کول | ۷ |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې متن په مناسب غږ ولولي او په لوستلو کې دې د زده‌کوونکو څارنه وکړي. | – زده‌کوونکي متن ته په دقت ګوري او غوږ نیسي. | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکی دې پر څو کمزورو زده‌کوونکو باندې متن په وار ولولي او د ستونزمنو کلمو په تلفظ او لوستلو کې دې پوره مرسته وکړي. | – زده‌کوونکي په وار متن لولي او د ستونزمنو کلمو سم تلفظ زده کوي. | |
| – ښوونکی له څو زده‌کوونکو څخه غواړي چې د صفت کلمې او ډولونو په اړه یې په وار معلومات وړاندې کړي. ښوونکی لازمه مرسته کوي. | – زده‌کوونکي په وار د صفت او د هغو د ډولونو په اړه معلومات ورکوي. | |
| – ښوونکی د متن د لومړي فعالیت جملې پر تخته لیکي او د صفتونو د کلمو په باب له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي. وروسته بیا د صفت کلمې او د هغه د ډولونو په اړه لنډ معلومات ورکوي او مثالونه یې پر تخته لیکي. | – زده‌کوونکي په جملو کې د صفت کلمې په نښه کوي او د صفت کلمې د ډولونو مثالونه په خپلو کتابچو کې لیکي. | |
| – ښوونکی دې د لوست د مرکې فعالیت په دوو زده‌کوونکو باندې د ټولګي په مخکې ترسره کړي او د نیمګړتیا په صورت کې دې لارښوونه او مرسته وکړي. | – دوه، دوه زده‌کوونکي دې د مرکې فعالیت ترسره کړي. | |
| – ښوونکی د لوست د (۴) فعالیت جملې پر تخته لیکي او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې په خپله خوښه په جملو کې ساده او مرکب صفتونه وښيي. | – زده‌کوونکي په وار د تختې مخې ته راځي او په یوه جمله کې ساده او مرکب صفتونه ښيي. | |
| – ښوونکی دې زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړي چې هر زده‌کوونکی دې په خپله ډله کې د (۵) فعالیت کلمې معنا او ورته جملې جوړې او په کتابچه کې دې ولیکي او خپله ښوونکی دې لازمه مرسته وکړي. | – زده‌کوونکي کلمې معنا کوي او جملې ورته جوړوي. | |
| – ښوونکی دې زده‌کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې په کورونو کې یو متن ولیکي. ساده او مرکب صفتونه دې پکې راولي او په بله ورځ دې هغه په ټولګي کې ولولي. | – زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده ترسره کوي. | |

| | |
|---|---|
| **د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**<br>**د ژبې د ګرامر زده کړه څه ګټه لري؟**<br>**ګرامر د ژبې له قواعدو او جوړښتونو څخه بحث کوي. که یوڅوک د ژبې ګرامر زده کوي ګټه یې داده چې د ژبې له جوړښت او د ژبې له ټولو اجزاو څخه به خبر او معلومات پیدا کړي په سمه توګه به لیکل او لوستل کوي.** | |
| **د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه**<br>**– د (ناپوه او ختګر) په کلموکې (نا) مختاړی دی او د ختګر په کلمه کې (ګر) د کلمې وروستاړی دی.**<br><br>**مختاړی: مختاړي یا پېشوندونه هغه نا خپلواکې کلمې دي چې د کلمو په سر کې ورسره نښلول کیږي لکه د (کار) له کلمې سره (بیکار) همکار، بدکار**<br><br>**وروستاړی: وروستاړي یا پسوندونه هغه نا خپلواکه کلمې دي چې د کلمو په پای کې ورسره ونښلي او نورې کلمې ترې جوړې شي لکه د (کار) کلمې سره وروستاړی (ګر) (کارګر) (ښوونه) (ښوونکی)** | |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**صفت او ډولونه یې**

صفت هغې کلمې ته وايي چې د یوه نوم حالت، کیفیت او څرنګوالی بیانوي. صفتونه پر څو ډوله دي او پـه لانـدې ډول ښودل کېږي.

۱- اصلي صفت چې د یوه نوم ذاتي ښه والی او بدوالی ښکاره کوي، لکه: ښه سړی، مشر سړی، بد سـړی او نـور.
اصلي صفتونه دا دي:
ښه- بد – تور – سپین – خړ – سور – غټ – لوی- نری – اوم – پوخ – خپل – پردی – لـوڅ – مـړ – روغ – جوړ – وړی – تږی – موړ – سوړ – ووړ – زوړ – ټیټ – لوړ – جګ – اوچت – ګرندی – پلن – لنـډ – اوږد – ارت – تنګ – ژوبل – ټپی – پوه او نور.

۳- نسبتي صفت: چې یو بل نوم ته یې نسبت شوی وي، لکه: کندهاری، پکتیاوال، یوسـف زی، کـورنی، سـلېمان خېل، وربښمین او نور.

۲- نسبتي صفت- هغه کلمې چې د هغو په واسطه یو نوم ته اشاره وشي ا و هغه ته اختصاص ورکړي، اشاري صـفت بلل کېږي، لکه: دا کورتۍ دې په څو روپۍ ګنډلې ده.
دغه سړی د غنمو لو کوي.
دا ونه ښه سیوری لري.
د هغه غره په سر ونې ښکاري.
دغه هلکان د زمرک ورېرونه دي.
دغه لرګي وچ او هغه نور لانده دي.
له پورتنیو مثالو څخه څرګنده شوه چې په پښتو کې د اشاري کلمې د نارینه، ښځې، مفرد، جمع، ساکښ او بـې سـا لپاره یو راز ویل کېږي.

۴- عددي صفت: هغه کلمې دي چې د هغو په واسطه د یو شي د شمېر اندازه معلومېږي، لکـه، دوه لاسـونه، دوې سترګې، شپږم کال، پنځمه ورځ او نور.

که چېرې یو عدد یوازې شمېر او اندازه وښیي مطلق عدد یې بولي او که چېرې په رتبه او درجه هم دلالت وکړي، نـو رتبي عدد ورته وايي، لکه: دی یوکمیس په سل افغانۍ ګنډي. نن د میاشتی ۲۶ ورځ ده.

مطلق عددونه بې له یو او دوه څخه د مذکر او مؤنث لپاره یو شان راځي او رتبي عددونه د خپل موصـوف تـابع دي، لکه لسم کال، لسمه ورځ.

۵- استفهامي صفتونه: د پوښتنې په وخت کې استعمالېږي او موصوف ورسره راغلی وي، لکه څومره غنم دې په کـار دي؟ کوم هلک پوه دی؟ څو کتابونه اخلې؟

٦- فعلي صفتونه هغه دي چې د فعل او کولو معنا هم پکې وي او د نورو صفتونو په شان د یو نوم حال او شـان هـم بیانوي.
فعلي صفتونه پر دوه ډوله دي: فاعلي صفتونه او مفعولي صفتونه
فاعلي صفتونه لکه: پالونکي، تلونکي، تلوني، تللي، راغلي، پاڅېدلي، ګرځېدلي.
مفعولي صفتونه لکه: ساتلي، لیکلي، پرې کېدونکي، وهل کېدونکي او نور.

فعلي صفتونه له مصدر څخه د مصدري علامو پرځای د (ی، ونکی، ونی) په راوړو جوړېږي د (ی) پـــه واســـطه جـــوړ شوي صفتونه په تېره زمانه پورې اړه لري، نور مثالونه يې دا دي:

تللی وخت په مثال مړی د لحد دی          مړی چا دی ژوندی کړی په ژړا

سل بللي ځایېږي او یو نابللی نه ځایېږي.

څوک چې کالي ګنډي، هغه ته ګنډونکی وایي.

په پښتو کې صفت تر موصوف دمخه راځي او دغه ترکیب ته توصیفی ترکیب وایي. صفت په تذکیر، تانیث، جمـــع او مفرد کې همېشه د موصوف تابع دی او د دواړو په منځ کې مطابقت لازم دی. لکه خوږه مېوه، خوږ ختکـــی، خـــوږې هندوانې، خواږه انګور، زوړ سړی، زاړه سړي، زړه ښځه، زړې ښځې.

صفتونه د حالاتو په لحاظ هم د موصوف تابع ګڼل کېږي. کوم بدلون چې په موصوف کې راځي هغه په صفت کې هـــم راځي، لکه: فاعلي حالت، مفعولي حالت، ارتباطي حالت.

تورو سترګو لیونی کړم – دغه وړوکی هلک چاوواهه – په لویو غرونو د خدایﷻ نظر دی. ډېرو کـــارونو ســـتړی کړم

ندایي حالت – ګرانه وروره ستړی مه شې

## مجرد وصفونه

مجرد وصف هغه ته وایي چې په بهر کې کوم مادي وجود ونه لري او خالي وصف او حالت تـــرې مرادېـــږي، لکـــه: لیونتوب، هوښیارتوب، روغتیا، اوږدوالی، دوستي، دښمني او نور.

په پښتو کې د مجرد وصف د جوړولو مشهورې علامې یا نښې نښانې دا دي:

(توب، تیا، والی، ی) دغه نښې نښانې د نوم او صفت په پای کې راځي او مجرد وصفونه ترې جوړېږي، لکه:

| | |
|---|---|
| سړی، سړیتوب | لوی، لویوالی |
| | تور، توروالی |
| لېونی، لېونتوب | جګ، جګوالی |
| مین، مینتوب | ترکاڼ، ترکاڼي |
| روغ، روغتیا | ورور، وروري |
| تینګ، تینګتیا | انډیوال، انډیوالي |
| لوړ، لوړتیا | |

د مجرد وصف د جوړولو لپاره ځینې نورې لاحقې هم شته، خو مثالونه یې لږ دي، لکه:

واله — له پښتون څخه پښتونواله

ولي — له خپل څخه خپلولي

ګلوي — له ورور څخه وررګلوي

ینه — له مړ څخه مړینه

ښت — له موړ څخه مړښت، له زوړ څخه زړښت

## یو ویشتم لوست:

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | د مطالبو سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | کتاب | |
| ۲ | د زده کـــــړې پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>– د کتاب د ګټو او ارزښت په اړه به وپوهیږي.<br>– د لوست په لوستلو سره به کلمې او جملې سمې ولولي.<br>– زده‌کوونکي به وکولای شي چې متن سم او روان ولولي.<br>– د متن په مطلب به په یوازې توګه خبرې وکړي.<br>– د لوست په اړوند به په دوه کسیزه توګه خبرې وکړای شي.<br>– د نوو کلمو معنا به زده او په جملو کې به یې وکاروي.<br>_ په پښتو ژبه به د خبرو کولو د زده کړې تکرار وکړي.<br>_ د متن د پای فعالیتونه به په خپلواکه توګه سرته ورسوي. | |
| ۳ | د تدریس لارې | په ډله ییزه توګه، د سوال او ځواب په بڼه او په یوازې توګه. | |
| ۴ | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکی | تخته، تباشیر، د موضوع په باب معلوماتي کتابونه او نور. | |
| ۵ | د ارزونې لارې او وسیلې | په لیکلي ډول، په شفاهي ډول، په یوازې او ګروپي ډول ارزونه. | |
| ۶ | د زده کـــــړې او تدریس فعالیتونه | سلام اچول، ستړي مه شي، حاضري اخیستل، د کورنۍ دندې کتنـــه او سمونه. | ۶ دقیقې |
| ۷ | د انګېزې رامنځته کول | آیا تاسو له درسي کتابونو پرته نور کتابونه پیژنئ؟<br>د کتاب لوستل څه ګټې لري؟<br>کوم ډول کتابونه موخوښیږي چې ویې لولئ؟ | ۴ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی په لوړ او مناسب غږ سره لوست لولي او ستونزمنې کلمې ورته تشریح او تلفظ کوي.<br>– ښوونکی زده‌کوونکي پر ډلو ویشي او هرې ډلې ته لارښوونه کوي چې متن په چوپتیا ولولي او ستونزمنې کلمې په نښه کړي.<br>– ښوونکی څو زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته په وار سره را غواړي چې د کتاب د ارزښت په باب نورو ته معلومات ورکړي، ښوونکی مرسته او څارنه کوي.<br>– ښوونکی سپارښتنه کوي چې دوه دوه زده‌کوونکي دې د کتاب د ښېګڼو په باب د سوال او ځواب په ډول خبرې وکړي.<br>– ښوونکی له هرې ډلې څخه په وار سره یو یو د تختې مخې ته راغواړي او لارښوونه ورته کوي چې یو دې کلمې پر تخته ولیکي، بل دې معنا کړي او دریم دې په جملو کې وکاروي، ښوونکی څارنه کوي.<br>کورنۍ دنده:<br>– ښوونکی دې زده‌کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې یوه ډله پخپله خوښه د کتاب د ارزښت په هکله پنځه کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي،بله ډله دې پخپله خوښه څو کلمې په جملو کې وکاروي. | – زده‌کوونکي متن ته په پوره پاملرنې سره ګوري اوغوږ نیسي.<br>– زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– زده‌کوونکي غوږ نیسي او د ستونزو په باب پوښتنه کوي.<br>– زده‌کوونکي دغه فعالیت ترسره کوي.<br>–نور زده‌کوونکي دغه کار په خپلو کتابچو کې ترسره کوي.<br>– زده‌کوونکي به خپلو کورونو کې کورنۍ دنده تر سره کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**

په کتاب کې یادونه شوې ده چې په کتاب کې ډېر ښه ښه شیان شته. له شیانو څخه موخه او مطلب د علمي، دیني، فرهنګي، هنري او د نورو ګټورو یادونو څخه دي. سربیره پر دې په کتاب کې ډول ډول انځورونه ځای پر ځای شوي چې د بېلابېلو موخو تصویر ښکاره کوي.

**د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه**

مور ولې کتاب لولو؟

مور ځکه کتاب لولو چې له هغې څخه پوهه، معلومات او تجربې تر لاسه کړو یعنې د کتاب لوستل او زده کړه موږ په کلي ډول د علم په ګاڼه سینګاروي.

## ښوونکي ته اضافي معلومات:

**کتاب**

په نړۍ کې ډېر نامتو او پېژندل شوي عالمان، پوهان او څېړونکي تېر شوي دي. د دغو سترو او علمـــي شخـــصیتونو له جملې څخه د څو تنو نومونه د یادونې وړ بولو، لکه: افلاطون، ارسطو، سقراط، فیثاغورث، اډیـــسن، انـــشتین، پیـــر روښان، ابوعلی سینا، ابوریحان البیروني، خوشحال خان خټک، مولانا جلال الدین محمد بلخي او نور. هغوی هـــر یـــو په خپل وخت کې علمي، ادبي، فرهنگي، طبي، تاریخي، معلوماتي او داسې نور ډېر کتابونه او آثار لیکلي او موږ ته یـــې په میراث پرېښي دي.

د یادونې وړ ده چې کتابونه په دوه ډوله دي، یو هغه کتابونه دي چې لیکوال د یوې مشخصې موضوع پـــه رڼـــا کـــې څېړنه کوي او کتاب په خپلواکه توگه لیکي، بل درسي کتابونه دي چې د پوهنې وزارت د ښوونې او روزنې موخـــو او پالیسیو په پام کې نیولو سره د ځانگړو مؤلفانو له خوا تالیف او طبع کیږي.

موږ ټولو ته معلومه ده چې د انسان پوهه د کتابونو په لوستلو او مطالعې زیاتیږي، نو په هر علمي کتاب کې ډېرې ښـــې او په زړه پورې موضوعگانې شته چې دغه موضوعگانې او مطالب په لوستلو تر لاسه کیږي.

هر کتاب که څه هم ډېر په زړه پورې مطالب به ونلري، خو بیاهم په یوځل لوستلو ارزي او هرو مرو تـــرې یوڅـــه زده کولای شو او زموږ معلومات او تجربې پراختیا مومي. له کتابونو سره مینه، علاقه او د هغو لوستل انسان تـــه د ښـــه او پرمختللي ژوند لار ښیي. راځئ چې له خپل ارزښتناکه وخت څخه گټه واخلو او په وزگارتیا کې بېلابېـــل کتابونـــه او آثار ولولو او خپله پوهه او تجربې زیاتې کړو.

حضرت جعفر صادق وایي:

– د ژوند تر ټولو غوره پانگه ښه کتاب دی.

## دوه ویشتم لوست:

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | د مطالبو سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | محمد ګل خان مومند | |
| ۲ | د زده کـــــړې پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– متن به سم او روان ولولي.<br>– د محمد ګل خان مومند او د هغه د ادبي کارونو په اړه به خبرې وکړای شي.<br>– د لوست د پای فعالیتونو پوښتنو ته به ځوابونه ووایي.<br>– په ډله ییزه توګه به په خبرو اترو کې فعاله ونډه واخلي.<br>– د نویو کلمو معنا به زده کړي او په جملو کې به یې وکاروي.<br>– په متن کې به نومونه پیدا کړای شي او پر تخته به یې ولیکي. | |
| ۳ | د تدریس لارې | په ځانګړې توګه د متن لوستل، سوال او ځواب، په یوازې توګه خبـــرې کول. | |
| ۴ | د تدریس وسیلې او مرســـــتندوی توکی | د امکان په صورت کې د محمد ګل خان مومند انځور. | |
| ۵ | د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، په یوازې توګه ارزونه او په ډله ییزه توګـــه ارزونه. | |
| ٦ | د زده کـــــړې او تدریس فعالیتونه | سترې مه شي، دحاضرۍ اخیستل او د کورنۍ دندې کتنه او اصلاح. | ٦ دقیقې |
| ۷ | د انګېزې رامنځته کول | آیا تاسو د محمد ګل خان مومند نوم اورېدلی دی؟<br>د هېواد له نومیالیو او د هغو له علمي خدمتونو سره آشنا کېدل موږ ته څه ګټه لري؟ | ۴ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې متن په مناسب غږ ولولي. | – زده کوونکي متن ته په پوره پاملرنې سره ګوري اوغوږ نیسي. | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکی دې متن په ځو کمزورو زده کوونکو باندې په وار ولولي او د ستونزمنو کلمو په تلفظ کې دې پوره مرسته وکړي. | – زده کوونکي په وار متن لولي او د ستونزمنو الفاظو تلفظ ته متوجه کیږي. | |
| – ښوونکی دې د لوست د مطلب په اړه له زده کوونکو څخه وغواړي چې په وار سره معلومات ورکړي. | – زده کوونکي په مینه د لوست په مطلب خبرې کوي. | |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې یوه ډله له بلې ډلې څخه پوښتنې وکړي او بله ډله دې ورته په شفاهي توګه ځوابونه ووایي. نور زده کوونکي دې د سم او یا غلط ځوابونو په هکله دقت وکړي. | – زده کوونکي په دې فعالیت کې فعاله ونډه اخلي. | |
| – ښوونکی دې له ځو زده کوونکو څخه په وار وغواړي چې د ټولګي په مخکې د محمد ګل خان مومند د ژوند او علمي خدمتونو په اړه خپل معلومات وړاندې کړي. | – زده کوونکي له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – ښوونکی دې ځو زده کوونکي په وار سره د تختې مخې ته راوغواړي چې یو زده کوونکی یو لغت پر تخته ولیکي، معنایې کړي او بل زده کوونکي ورته مناسبه جمله جوړه کړي. نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– ښوونکی دې زده کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې په متن کې نومونه پیدا او په جملو کې یې وکاروئ. | – زده کوونکي له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې (ې) لرونکی کلمې په متن کې پیدا او په خپلو کتابچو کې یې ولیکي. | – زده کوونکي دې (ې) لرونکي کلمې پیدا او په کتابچو کې دې ولیکي. | |

| | |
|---|---|
| **د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**<br><br>حرب: جګړه، جنګ، مقدمه.<br><br>**د دوو هېوادونو یا د یوې ډلې هېوادونو د یوې برخې یا د ټولو قواوو ټکر، تصادم او د هغو هیلو د تر سره کولو لپاره چې د سولې د لارې ممکنې نه وي.** | |
| **د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه**<br><br>حربي ښوونځی یا حربي پوهنتون: **د افغاني وسله والو قواوو د منصبدارانو د لوړې روزنې** مرکز. | |

## ښوونکي ته اضافي معلومات:

**محمد ګل خان مومند**

محمد ګل خان مومند د محمد خورشید خان زوی، د مؤمن خان لمسی، د عبدالکریم خان کړوسی، چې په خټه مومند او په مومندو کې حسن خېل و. محمد ګل خان مومند په ۱۳۰۳ هجری قمري کال د کابل د اندرابیو په کوڅه کې زېږېدلی دی. لومړنۍ زده کړه یې په خصوصي ډول وکړه او بیا په ۱۳۲۷ لمریز کال کې د حربي ښوونځي په دویم ټولګي کې شامل شو. په پنځم کال کې یې خپل عسکري تعلیم سرته ورساوه او پس له هغه د اردلیانو په غونډ کې د قوماندان په رتبه وټاکل شو.

دغه وخت یې هم شاهي ټولګي ته درس ورکاوه او هم یې د حربي ښوونځي د سر معلمۍ وظیفه چلوله.

د دغه خدمت په نتیجه کې د سپه سالار صالح محمد خان د یاور په صفت وټاکل شو او بیا د شاهي ګارډ قوماندان شو. یو څه وخت یې په ترکیه کې د افغاني سفارت د نظامي آتشه په حیث وظیفه اجراء کړې ده. محمد ګل مومند په ۱۳۰۰ ش کې د (مجموعه عسکري) د مجلې مدیریت هم کړی دی چې د حرب د وزارت له خوا خپرېدله.

دی په ۱۳۰۳ ش کال کې د پکتیا د عسکري قوماندان او اعلی حاکم په توګه وټاکل شو. په ۱۳۰۶ ش کې د مزار شریف د ملکي پلټنې د رییس په صفت او بیا د ننګرهار د عسکري قوماندان په صفت مقرر شو. د کورني اړو دوړ پر مهال یې لومړی له سردار محمد هاشم خان سره او بیا یې په پکتیا کې د سردار محمد نادر شاه سره کلکه ملا وتړله او په زړه پورې خدمتونه یې سرته ورسول.

د سردار محمد هاشم خان په کابینه کې د کورنیو چارو وزیر په توګه وټاکل شو، خو ورسره یې اول د ننګرهار په ولایت کې بیا د پروان په ولایت کې د تنظیمه رییس دنده هم په ښه شان چلوله.

په دغو ولایتونو کې د امن له ساتنې وروسته په ۱۳۱۱ ش کال کې د کندهار او فراه د ولایتونو د تنظیم لپاره ولیږل شو. په ۱۳۱۳ ش کال کې د پخواني قطغن، بدخشان، مزار شریف او میمنې د ولایتونو د تنظیمه رئیس په حیث وټاکل شو.

په هر ځای کې یې خپله اسلامي او پښتنې دنده په پوره ایمانداری سرته ورسوله او د خپلو ښو خدمتونو په اثر یې د لمر اعلی لوړ نښان واخیست.

محمد ګل خان مومند په ۱۳۱۹ ش کال کې د دولت د وزیر په توګه مقرر شو. له دې وروسته یې خپل پاتې عمر په کور کې د پښتو ژبې په علمي او ادبي خدمت کې تیر کړ.

اروابناد مومند تر ۱۳۲۷ ش پورې په سمنګانو کې اوسېده. بیا په دغه کال د غازی شاه محمود خان د صدارت په وخت کې کابل ته راغی او پاتې عمر یې په کابل، ننګرهار کې تیر کړ، څو ژمي یې د کونړ په نرنګ کې او نور ژمي یې په خپل اصلي کلي د شینوارو ولسوالۍ په ګولایي کې تېر کړل، خو په اوړي کې به همیشه کابل ته راته او په دې ډول یې د خپل کوچاني ژوند سلسله هم ټینګه ساتله.

محمد ګل مومند په ۱۳۳۴ ش کال د لویې جرګې د نایب په توګه غوره کړای شو او خپله پښتني دنده یې په ښه ډول سرته ورسوله.

دغه ننګیالی، توریالی، خبر لوڅ او جرګه مار پښتون د ۱۳۴۳ کال د زمري د میاشتې په (۲۷) مه نېټه د سه شنبې په ورځ د سهار په اتو بجو د (۸۰) کالو په عمر، په بریکوټ کې په کرایي کور کې وفات شو او په پوره درناوي او عزت د کابل د شهدای صالحینو په هدیره کې خاورو ته وسپارل شو.

د ده په جنازه کې د کابل لوی، لوی خلک او عسکري مامورین او نور ډېر مینه وال شامل وو. د ارواښاد مومند فاتحــه د پوهنې د وزارت له خوا د اسد په ۲۸ – ۲۹ د شیر پور په لوی جومات کې واخیستله شوه.
د ده دعا ته د افغانستان پاچا محمد ظاهر شاه او نور ډېر خلک راغلي وو. محمد ګل خــان مومنــد نارینــه اولاد نــه درلود، یوازې یوه لور یې پاتې ده چې په خپل ژوند یې د لال پورې صالح محمد ترکزی ته ورکړې وه.
**اخلاق او شخصیت**
دا هر څوک مني چې ارواښاد محمد ګل مومند د یو لوړ شخصیت، سپیڅلي کریکتر او کلک عزم خاوند و. په مــذهبي اصولو ټینګ ولاړ او په پښتو پښتونواله ښځي مین و.
د پښتون له تاریخ او عظمت سره یې بې اندازې مینه لرله، بې پښتو او بې همته پښتانه یې نه خوښېدل.
د ښو خویونو او پښتني اخلاقو په جامه ښایسته و، د ده مجلس او مرکه د پښتونولۍ یوه لویه مدرسه وه. ده به تل پــښتنو ځوانانو ته د پښتني خویونو درس ورکاوه. بې پښتو یې بده ګڼله. د ده په وجود کې عسکریت، سیاست، علــم او ادب ټول یوځای شوي وو او په دغه سبب په هېواد کې د یو ملي شخصیت په صفت پېژندل شوی دی.
ښاغلی محمد ګل مومند د یوې نه بدلېدونکی عقیدې خاوند و.
ده لکه د تیرو ننګیالو پښتنو په شان د پیسو په ځای، کیسې ګټلې او په دولت او پیسو پسې یې سرنه خوړاوه.
دا وجه وه چې په کابل کې تل په کرایي کور کې اوسیده او تر مرګه په کابل کې د کوم کور خاوند نه شو.تر دې چــې سا یې هم د بل په کور کې وختله او همدا خبره د ده لوی ویاړ او امتیاز ګڼل کیدای شي.
ښاغلی مومند سربېره پر نورو صفتونو یو ښه خطیب او ویاند و. د ده په ویناوو او خطابونو کې پوره فــصاحت، زیــات جرأت او قوي منطق موجود و.
ده په هر صورت او هره موقع کې له اخلاقي زړورتیا نه کار اخیست او هېڅ کله یې له حقې وینــا څخــه مــخ نــه دی اړولی.
د دغه لوړ شخصیت او پښتني کریکټر له کبله یې د بابا لقب ګټلی او هر چا ورته د بابا توب حیثیت ورکړی و.
**علمي او ادبي خدمت:**
ارواښاد محمد ګل مومند سربېره په سیاسي او عسکري خدمتونو په علمي او ادبي برخو کې هم پاخه ګامونــه اخیــستي دي او د پښتو ژبې لپاره یې مهم او ارزښتمن کارونه سرته رسولي دي. کوم وخت چې په کندهار کې تنظیمه رئــیس و، نو هلته یې د اعلیحضرت محمد نادر شاه په اجازه په ۱۳۱۱ ش کــال کې د پښتو انجمن لومړی ټېره کېښوده چې بیــا همدغه انجمن کابل ته را وغوښتل شو او د کابل له ادبي انجمن سره یوځای شو او وروسته په ۱۳۱۶ کــال کــې پــه پښتو ټولنه واوښت.
مومند په کندهار کې رسمي دفترونه په پښتو اړولي وو چې بیا وروسته دغه لار چا ټینګه نه کړای شوه. ده پــه کنــدهار کې ډېر زلمیان وروزول او د پښتو د خدمت ډګر ته یې چمتو کړل. د کندهار (طلوع افغان) هم د ده په امر پــه پــښتو اوښتی دی. د ده نیت او ارادې په ډېرو وختونو کې د پښتو له ژوند سره زیاته مرسته کړې ده او تل یې د پښتو د لوړتیــا هیله په رسمي او شخصي ډول پاللې ده. د ده لومړنی علمي اثر له پښتو سیند څخه شروع کېږي د دې قاموس د لیکلــو لپاره یې له ډېرې پخوا څخه د لغاتو په راغونډولو لاس پورې کړي و، خو د کتاب په شکل د هغه له مړینې وروســته پــه ۱۳۶۱ لمریز کال د کابل په عمومي چاپخانه کې چاپ شو.
دغه قاموس دوه ټوکه دی او ټول مخونه یې (۷۶۵) ته رسېږي. دا قاموس په ډېر زیار په پښتو او پارسي لیکل شــوی او په افغانستان کې لومړی چاپي قاموس ګڼل کېږي.

د پښتو ژبې د علمي بنسټ ټینګولو لپاره د ده بل لوی علمي خدمت د ((پښتو لیار)) ده. د پښتو لیار د پښتو ژبې یو لوی ګرامر دی چې په پښتو ژبه لیکل شوی او په ۱۳۱۷ ش کال په لاهور کې د عبدالعظیم سابې په اهتمام چاپ شوی دی.

د پښتو ژبې لیار یوه ډېره خوږه په زړه پورې سریزه هم لري چې د هر پښتون زړه وربانديې خوږېږي. په دې ګرامر کې داسې ډېرې نوې څېړنې راغلي دي چې په پخوانیو ګرامرونو کې نشته. په آخر کې د مصدرونو یو بشپړ فهرست هم لري. ټول مخونه یې (۴۰۰) ته رسيږي. د ښاغلي مومند بل خوندور اثر (لنډکی پښتو) ده چې په ۱۳۲۷ ش کال د پښتو او پښتنولۍ ښېګڼې په ډېر ښایسته او سپېڅلي دنده کې بیان شوي دي. ده ځینې نور کتابونه هم لیکلي دي، خو په قلمي شکل کې پاتې دي او چاپ شوي نه دي، چې نومونه یې دادی:

۱- پښتني روزنه.

۲- پښتو پښتنواله.

۳- د پښتو لویه نحوه (معاني او بیان).

۴- د پخلي کتاب چې (۴۰۰) مخونه لري او داسې نور.

ستر پښتون محمد ګل خان مومند بابا

مولف: س غريبيار (سيدا ګل غريبيار).

د چاپ کال کابل ۱۳۸۲.

## درويشتم لوست

## د تدريس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | د مطالبو سرليکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | املاء څه ته وايي؟ | |
| ۲ | د زده کـــــړې پوهنيزې، مهارتي، ذهنيتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د املا په تعريف به وپوهيږي.<br>– د املاء په اړه به په نظري او عملي توګه معلومات ورکړای شي.<br>– متن به سم او روان ولولي.<br>– د نويو لغتونو معنا به زده کړي او په مناسبو جملو کې به يې وکاروي.<br>– د متن لنډيز به په خپله ژبه ووايي. پښتو ژبه به زده کړي.<br>– د املاء د اړتيا او سم ليک په اړه به د محاورې فعاليت ترسره کړي.<br>– د لوست د وروستۍ برخې فعاليتونه به سم تر سره کړي. | |
| ۳ | د تدريس لارې | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه (خبرې اترې). | |
| ۴ | د تدريس وسيلې او مرســــتندوی توکي | د کلمو ليکلي کارتونه. | |
| ۵ | د ارزونې لارې او وسيلې | شفاهي ارزونه، ليکلې ارزونه، په ځانګړې توګه ارزونه. | |
| ۶ | د زده کــــړې او تدريس فعاليتونه | ستړي مه شي، حاضري اخيستل او په بېلابېلو بڼو د کورنۍ دندې کتنه او اصلاح. | ۶ دقيقې |
| ۷ | د انګېزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکی کولای شي چې لاندې پوښتنې د انګېزې پـــه ډول پـــه شفاهي او ليکلې بڼه له زده‌کوونکو څخه وپوښتي، چـــې زده‌کـــوونکي د لوست پوهېدو ته وهڅول شي.<br>– تاسو ليکل څنګه زده کړي دي؟<br>– ولې د املاء زده کړې ته اړتيا لرو؟ | ۴ دقيقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښاغلی ښوونکی دې متن سم او روان ولولي او د ستونزمنو الفاظو په سم تلفظ دې غور وکړي. | – زده‌کوونکي متن ته په دقت ګوري او د ستونزمنو الفاظو سم تلفظ زده کوي. | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکی دې متن په څو زده‌کوونکو وار په وار د ټولګي په وړاندې ولولي او د نیمګړتیا په صورت کې دې پوره مرسته وکړي. | – زده‌کوونکي متن په وار لولي. | |
| – ښوونکی دې له څو زده‌کوونکو څخه وغواړي چې په وار د ټولګي په وړاندې د املاء د اړتیا په اړه یوه، یوه دقیقه خبرې وکړي. | – زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – ښوونکی دې د هرې ډلې زده‌کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې هر یو دې په خپل نوم د ناروغۍ رقعه په سپینو پاڼو ولیکي. ښوونکي دې د هغوی املایي تېروتنې اصلاح کړي. | – زده‌کوونکي په ځانګړي توګه د ناروغۍ رقعه لیکي. | |
| – ښوونکی دې دوه، دوه زده‌کوونکي په درېیو ډلو کې د ټولګي مخې ته را وغواړي. لومړی دې ځان وروپېژني او بیا دې د املاء د اړتیا او سم لیک په اړه له یو بل سره مرکه وکړي.<br>ښوونکی د زده‌کوونکو شفاهي خبرو ته پام کوي او هغوی ته د کلمو د سم تلفظ لارښوونه کوي. | – زده‌کوونکي په دې فعالیت کې په علاقمندۍ برخه اخلي. | |
| – ښوونکی دې د نویولغتونو لیکلي کارتونه په ډلو ووېشي چې د هرې ډلې زده‌کوونکي په یوازې توګه لغتونه معنا او بیا ورته جملې جوړې کړي. | – زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – ښوونکی دې زده‌کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې په کور کې خپل ښوونځی ته د ناروغۍ او ضرورت رقعې تمرین کړي، په ښکلي خط دې ولیکي او په بله ورځ دې ټولګي ته راوړي. | – زده‌کوونکي په پوره علاقمندۍ کورنۍ دنده تر سره کوي. | |
| **د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**<br>ضرورت د (اړتیا) په معنا ده او دغه کلمې مترادفې دي.<br>مرکه: خبرې اترې | | |
| **د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه**<br>آغلې: د ښځینه نوم په سرکې راځي. | | |

## ښوونکي ته اضافي معلومات:

**املاء څه ته وايي؟**

املاء د ليکنې يو مهم اصل دی. املاء او انشاء د ليکنې اساسي توکي دي، لکه: په معمارۍ کې مساله او اوبه.

املاء په لغت کې مهلت ورکولو او ډکولو ته وايي. په ادبي اصطلاح کې خپلې يا د بل چا خبرې په صحيح ډول ليکل دي. که څوک له ځان څخه څه نشي ليکلی، خو د بل د ليک له مخې نقل کولای شي دغسې نقل ته املاء نشو ويلای.

د املاء د ليکلو په وخت لاندې ټکي بايد په پام کې ونيسو:

۱– هغه څه چې ليکئ بايد د سم تلفظ له مخې يې وليکئ او غلط تلفظ پسې و لاړ نشئ. د مثال په ډول په هره ژبه کې د عوامو او لوستو خلکو تر منځ يوڅه توپير لري.

ځينې الفاظ شته چې په ويلو کې يو راز او ليکلو کې بل راز وي، لکه: په فارسي کې (او) وايي، خو په ليکلو کې (آب) ليکي په پښتو کې (الک) چې (هلک) ليکل کېږي.

۲– د الفاظو په ليکلو کې د ګرامر درې برخې (غږ پوهنه، فونولوژي، ګړ پوهنه، مورفولوژي، يا نحوه) قواعد بايد پوره مراعات شي.

ځينې جملې لنډې ويل کېږي، خو اوږدې ليکل کېږي، لکه: په پښتو کې (څې کې) چې په ليکنه کې (څه يې کوې).

۳– دوه بېلې کلمې چې هره يوه جلا مورفونولوژيکي خاصيت ولري، بايد سره يوځای ونه ښلول شي. لکه ټول سړي، ټولسړي، لوی کود، لويکود.

۴– که له دوو کلمو څخه يوه کلمه جوړه شوې وي، نو هغه ته پوخ ترکيب هم ويلی شو، هغه بايد بېل ونه ليکو، لکه: ټوليمشر يا ټولواک.

۵– کله چې کلمې ليکو، بايد د بلې کلمې په شان يې ونه ليکو، ځکه د کلمې معنا بدلون مومي، لکه: پوښتنه، پښتنه چې پوښتنه تپوس، پښتنه يو مؤنث نوم دی يا ګوډ، ګډ ونه ليکو.

– غږ پوهنه، فونو لوجي د ژبپوهنې يوه څانګه ده چې د ژبې اوازونه مطالعه کوی. غږ پوهنه، آوازونه د صوتي غړو د يو ځای کېدو او د هغو د حرکاتو له مخې چې د نومړو آوازو د توليد په وخت کې اجرأ کيږي، په دقت سره مطالعه کوي او د هر راز آواز لپاره داسې سمبول ټاکل کيږي چې يوازې هماغه آواز ښيي.

– فونو لوژي: د تورو د آوازونو او غږونو سم تلفظ مطالعه کوي.

– صرف: مورفولوژي، ګړ پوهنه د يوې ژبې د مورفيمو (کلمو) د جوړښت له طريقو او د کلمود ډولونو او حالاتو څيړنې او تشريح کولو ته وايي.

نحوه: هغه پوهه چې د جملې له جوړښت څخه بحث کوي د نحوې يا سنټکس په نامه يادېږي.

ماَخذونه: ژب ښودنه، صديق الله رښتين.

د ليکوالۍ فن: محقق سيد محی الدين هاشمي، دويم چاپ.

## څلر ويشتم لوست:

## د تدريس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| گڼه | د مطالبو سرليکونه | موضوعگانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | روزنيز شعر | |
| ۲ | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتې، ذهنيتې موخې** | د دې لوست په زده کړې سره به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د شعر په معنا، مفهوم او ډول به پوه شي.<br>– روزنيز شعر به له نورو شعرونو سره توپير کړای شي.<br>– د شعر ډولونه به وپېژني.<br>– د شعرونو له روزنيز اړخ څخه به معلومات ترلاسه کړي.<br>– په شعر کې به سيلاب او هيجا وپېژني.<br>– د شعر له جوړښت سره به آشنايي پيدا کړي.<br>– د دې لوست د فعاليتونو د حل وړتيا به پيدا کړي.<br>– د نويو لغتونو په ليکلو،لوستلو او معنا به پوه شي او وبه کولای شي چې نوي لغتونه په جملو کې وکاروي. | |
| ۳ | **د تدريس لارې** | پوښتنې، ځوابونه، ځانگړې او ډله ييز فعاليتونه. | |
| ۴ | **د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي** | درسي کتاب، توره تخته، تباشير، بېلابېلې شعری ټولگې. | |
| ۵ | **د ارزونې لارې او وسيلې** | په شفاهي ډول، ليکلي ارزونه، د څارنې ارزونه. | |
| ٦ | **د زده کړې او تدريس فعاليتونه** | لومړني فعاليتونه<br>سلام اچول، ستړې مه شې، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه. | ٦ دقيقې |
| ۷ | **د انگېزې رامنځته کول** | – پر توره تخته يا تخته د (روزنيز شعر) د سرليک ليکل.<br>– د شعر د پيژندنې د اړتيا او ارزښت په هکله د پوښتنو کول.<br>– د څو لنډو پوښتنو په کولو سره د نوي لوست پيل. | ۴ دقيقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| – په ښه او لوړ غږ د متن لوستل.<br>– په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کول.<br>– له شعر سره د زده‌کوونکو بلدول.<br>– د شعر یوه یا دوه مسرې پر تخته لیکل او هغه په څپو وېشل.<br>– د شعر په بېلابېلو ډولونو د زده‌کوونکو پوهول او په دې اړوند له هغوی سره مرسته کول.<br>– د زده‌کوونکو پر ډلو ویشل او د یو بل په مرسته او مشوره د لوست د تمرین حل.<br>– د ځوابونو په ویلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته او د هغوی څارنه.<br>– د ټولګي په وړاندې پر تخته باندې د فعالیتونو د ترسره کولو لپاره د زده‌کوونکو هڅول، د لوست لنډیز او یو شمېر مفهومونو تکرار او د نیمګړو جملو په بشپړولو کې له زده‌کوونکو سره مرسته.<br>– دوه زده‌کوونکي دې د لوست د ښېګڼو په باب د ټولګي په وړاندې خبرې وکړي او په دې اړوندې ښوونکی مرسته کوي. | – متن ته په پوره ځیرتیا غوږ نیول.<br>– په چوپتیا سره د متن لوستل او د روزنیز شعر پر مفهوم ځانونه پوهول.<br>– شعر پیژندل او د هغه په څپو باندې ځانونه پوهول.<br>– غوږ نیول او د ستونزمنو لغتونو په باب د پوښتنو کول.<br>– زده‌کوونکي په ډلو کې فعاله ونډه اخلي.<br>– پوښتنو ته ځوابونه وايي.<br>– د ټولګي په وړاندې پر تخته په فعالیتونو کې فعال ګډون.<br>– د لوست لنډیز په خپله ژبه ویل او د نیمګړو جملو بشپړول.<br>– زده‌کوونکي غوږ نیسي او د ستونزمنو کلمو او لغتونو پوښتنه کوي. | ۳۵ دقیقې |
| **د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**<br>ټټو: جمع یې ټټوان<br>یابو، وړوکی آس چې دسورلۍ نه وتلی وي او د بار وړلو لپاره استعمالیږي، هغه آس چې د سورلۍ وړنه وي. | | |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

شعر د الفاظو او کلمو داسې یو ترکیب دی چې الفاظ او کلمې یې د بدلون او تعریف څخه عاجز دي. دا ځکه چې شعر د الفاظو له هنري اوډون او تسلسل څخه جوړ‌ی او د هنر او استعارو په ژبه خبرې کوي. نو موږ شعر هغه څه ته ویلای شو چې شعریت ولري او په هنري ژبه رامنځ ته شوی وي. دا څرګنده خبره ده چې شاعر یو هنري معمار دی او باید وي او هغه ژبه چې شاعر پرې شاعري کوي د معنٰی کلمې او توري د هنري ودانۍ توکي دي، د شاعر هر شعر د یوې ودانۍ حیثیت لري. که د ودانۍ په جوړښت کې شاعر خپل هنري کمال په مناسب انداز کې پکار اچولی وي ژوند یې د هنر او هنر یې له ژوند سره داسې اخښلی وي، لکه: په خوړوکې مالګه، د ژبې له اړوندو توکو څخه یې یو منل غور چاڼ کړی وي او بیا یې دا غوړې مرغلرې د هنریت په ښکلي تار ځېل کړي او کارولې وي، نو په هماغه اندازه به دا ودانۍ ښایسته او د ځانګړو هنري ارزښتونو لرونکی وي.

شعر باید د وخت د اړتیاوو او د شاعر د ټولنیز چاپیریال زیږنده وي. یوازې د همدې اصل له مخې شاعر خپل ټولنیز رسالت خوندي ساتلای شي. شاعر د شعر په ژبه د خپل ولس او هېواد ترجماني کوي او ویده ذهنونه او ولسونه له درانده خوبونو څخه ویښوي او د ژوند او پرمختګونو سمې لارې ته یې رهنمایي کوي. البته زموږ شاعرانو ډول ډول شعرونه ویلي دي، لکه: حماسي شعرونه، وطني شعرونه، د علم او پوهې په هکله شعرونه، ښوونیز او روزنیز شعرونه چې هر شعر ځانته خاص ارزښت لري. خو روزنیز شعر هغه شعر دی چې شاعر خپل شعر د انسان په تېره بیا د زده‌کوونکو لپاره اخلاقي، اجتماعي، د بشر دوستۍ، همکارۍ، خواخوږۍ، د مشرانو درناوی او نورو موضوعاتو په پام کې نیولو سره ورته شعرونه جوړ کړي. شاعر پخپلو روزنیزو شعرونو سره د انسان روح روزي او د انسانیت په زړه پورې لارښوونه ورته کوي.

ګـــــرانه وطنه څومره زیبا یې — جنـــــت د ځمکې زړه د دنیا یې
ښـــــاغلی تــــاج ته د ایشیایې — وړ د ستایـــــــلو ته په رښتیا یې
لعل و ګوهر شته ستا بدخشان کې — تمدن خپور شو ستا په جهان کې

استاد الفت

**سره زر**

عـــــالمان دي روښنایـــــي د دې دنـــــیا — عـــــــــالمان دي د تمام جهان پیشوا
که څوک لار غواړي وخدای و هم رسول ته — عـــــــــالمان دي د دې لارې رهنما
کیمیاګـــــــــر که د کیمیا په طلب ګـــرځي — هـــــــمدمـــي د عـــــالمانو ده کیمیا
په مجلـــــــس د عـــــالمانو به سره زر شي — کـــه څوک کاڼی وي که لوټه د صحرا
جـــاهلان دي په مثال د مـــــــــــرده ګانو — عـــــالمان دي پــــــــه مثال د مسیحا
چې مـــــــــرده یې لـــه نفسه ژوندی کیږي — عـــــــــالمان دي واړه هـــــسې اولیا
هـــــــــر سړی چې رتبه نـــــه لري د علم — سړی نـــــه دی خالی نقش دې ګـــویا
زه رحـــــمان حلـــقه بګوش د هر عالم یم — که اعـــــلی دی که اوسط دی که ادنا

(رحمان بابا)

زون: سیمه، منطقه

اخښلی– اوړه لندول

## پنځه ویشتم لوست

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| گڼه | د مطالبو سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | لنډۍ | |
| ۲ | د زده کـــــــړې پوهنیزې، مهارتی، ذهنیتی موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>– لنډۍ به وپېژني.<br>– د لنډیو په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>– متن به سم او روان ولولي او په دې به وپوهيږي چې د لنډۍ لـــومړۍ مسره نهه څپې او دویمه مسره یې دیارلس څپې ده.<br>– څو لنډۍ به له یادو ووایي.<br>– د نویو لغتونو معنا به زده کړي او په مناسبو جملو کې به یې وکاروي.<br>– داسې پښتو کلمې به پیدا کړي چې په کې د پښتو (ی) ګانې کـــارول شوې وي.<br>– د متن د وروستۍ برخې فعالیتونه به تر سره کړي. | |
| ۳ | د تدریس لارې | لوستل، لیکل، خبرې کول | |
| ۴ | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکی | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، ځانګړې ارزونه، د سوال او ځواب ارزونه. | |
| ۵ | د ارزونې لارې او وسیلې | په شفاهي ډول ارزونه، لیکلي ارزونه، د څارنې ارزونه. د سوال او ځواب ارزونه. | |
| ۶ | د زده کـــــړې او تدریس فعالیتونه | سترې مه شې، د حاضرۍ اخیستل او په بېلابېلو بڼو د کورنۍ دندې کتنـــه او اصلاح. | ۶ دقیقې |
| ۷ | د انګېزې رامنځته کول | – آیا تاسو لنډۍ پېژنئ؟<br>– تاسو لنډۍ اورېدلي دی؟<br>– تا سو کوم ډول لنډۍ پېژنئ؟<br>ښاغلی ښوونکی کولای شي چې نوموړې پوښتنې په شفاهي بڼـــه ترســـره کړي. | ۴ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| – ښوونکی دې لوست په مناسب غږ ولولي. | – زده‌کوونکي دې لوست ته په دقت وګوري او غوږ دې ونیسي. | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکی دې د لوست جملې او پاراګرافونه په زده‌کوونکو باندې وار په وار ولولي او په لوستلو کې دې پوره مرسته وکړي. | – زده‌کوونکي په وار د لوست ټاکلې برخه لولي او د ستونزمنو کلمو سم تلفظ زده کوي. | |
| – ښوونکی دې له څو زده‌کوونکو څخه وغواړي چې د ټولګي په وړاندې د لوست په مطلب خبرې وکړي. | – څو زده‌کوونکي په خپله خوښه د لوست په مطلب یعنې د لنډیو په اړه خپل معلومات وړاندې کوي. | |
| – ښوونکی دې له څو زده‌کوونکو څخه وغواړي چې په وار سره څو پښتو لنډۍ له یادو ووایي. | – زده‌کوونکي په خپله خوښه څو لنډۍ وایي. | |
| – ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه پوښتنې وکړي چې په لنډۍ کې کوم مطالب بیانیږي؟ | – زده‌کوونکي مناسب ځوابونه وایي. | |
| – ښوونکی دې دوه ډلې د ټولګي په وړاندې راوغواړي چې په رقابتي توګه هره ډله پښتو لنډۍ ووایي. | – زده‌کوونکي په رقابتي فعالیت کې په مینه برخه اخلي. | |
| – ښوونکی دې زده‌کوونکي په ډلو ووېشي، د لومړۍ ډلې هر یو تن دې د دویمې ډلې هر یو تن څخه د متن د لاندنیو کلمو معنا وپوښتي، د دویمې ډلې غړی دې معنا او د درېیمې ډلې غړي دې په وار هغه په جملو کې راوړي. ښوونکی دې مرسته وکړي. | – زده‌کوونکي په دغه فعالیت کې فعاله ونډه اخلي. | |
| – ښوونکی دې د لوستل شوي متن ارزونه ترسره کړي او بیا دې بېلابېلې کورنۍ دندې زده‌کوونکو ته ورکړي چې هغوی په خپله خوښه کورنۍ دنده انتخاب او هغه په کور کې ترسره کړي.<br>– څو پښتو لنډۍ په خپلو کتابچو کې ولیکئ.<br>– څو (ی) لرونکې پښتو کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او بیا ورته مناسبې جملې جوړې کړئ. | – زده‌کوونکي په خپله خوښه کورنۍ دنده خوښوي او بیا په خپلو کورونو کې په کتابچوکې د هغه ځوابونه لیکي. | |

| | |
|---|---|
| **د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**<br>**سپلاب: څپه، هجا، سيلاب، هغه کلمه يا د يوې کلمې يوه برخه چې په يوه ځل يا يوه پلا تـــر خولې راووزي، يا هغه توری يا توري چې په يوه صوتي وار تلفظ کيږي. زموږ په ژبه کې غالباً ۱ – ۴ سپلابيزې کلمې شته. يوه سپلابيزه: کور، او، ژر، دوه سپلابيزه:**<br>**وابنه (وا + بنه). درې سپلابيزه: ناجوړتيا (نا+جوړ+تيا).**<br>**څلور سپلابيزه: پښتورګی (پښ+ ته+ ور+ ګی)** | |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**
مخکې له دې چې د لنډۍ په هکله څه معلومات وړاندې شي، لازمه ده چې لومړی د فولکلور په هکله یو څه لنډ معلومات وړاندې کړو.
فولکلور د ولسي ژوند هینداره ده. په دې هنداره کې د خلکو دودونه، ارزښتونه، چال چلند، انګېرنې، او د ژوند هر راز لارې چارې منعکسېږي.
د فولکلور د څېړنې ساحه ډېره پراخه ده، خو عمده برخه یې ولسي دودونه، خرافات، رواجونه، ولسي ادب (لکه متلونه، سندرې، کیسې او نور) دي.

## لنډۍ

لنډۍ د پښتو د ولسي ادب یوه بې سارې بډایه پانګه ده. زموږ د ټولنې د ژوند او آیډیا هېڅ خوا نشته چې په لنډیو کې یې انعکاس نه وي موندلی.
مینه، ښکلا، وصال، بېلتون، خوښي، خواشیني، تېری، عدالت، سرښندنه، وطن پالنه اوهر ډول رزمي او بزمي ایډیا په لنډیو کې ځای شوي دي. د پښتو د ولسي ادب، روحیاتو، د ژوند د شرایطو، کلتور او دود د پېژندلو لپاره لنډۍ د یوه دایره المعارف حیثیت لري.
لنډۍ د ټپې، سرې، ټیکې په نومونو هم یادېږي، د پښتنو په هره سیمه، هر کلي او هر کور کې د ولسي ادب یوه مهمه برخه ده، خو په هره سیمه کې په خاصو غږونو او ټاکلي ډول ویل کېږي چې مشهور یې د تیرا، ننګرهار، وردګو، شلګر، کندهار او نورو سیمې دي او هر ځای یې غږ او کمپوز د سیمې تر اغېزې لاندې وي او د هر ډول موسیقۍ په قالب کې ځایېږي.
**د لنډیو فورم**
لنډۍ همېشه له دوو برخو جوړې وي چې لومړۍ برخه یې (۹) او دویمه یې (۱۳) سېلابه وي.
د لنډۍ دویمه مصرع همېشه په (ونه – UNA ) – (څرګندواو) ینه، INA (څرګنده ي)، (زورکی + ana)، (زورکی + مه، مجهوله ی × مه) پای ته رسیږي، لکه:
په لوړو غرو د خدای نظر دی
په سر یې واورې اوروي چاپېر ګلونه
له دغه فارموله وتلې لندۍ له ادبي معیاره وتلې او بېخي کمې دي.
ما د پښتو لنډیو د لومړي ټوک د (الف ز، ی) لنډۍ ولتولې چې ټولې (۴۸۶) لنډۍ کېږي په هغو کې یوازې یوه لنډۍ په (زور + نه ana) پای ته رسېدلې او د (۱۸) په ana – زورکي + نه)
آرمان آرمان خپله وطنه
د خپل وطن جامې مې ولوېدې له تنه
**په لنډیو کې د ښځو ونډه**
د پښتو په ولسي ادب کې عموماً او په لنډیو کې خصوصاً د ښځو ونډه ډېره زیاته ده. همدغه لنډۍ دي چې په ویرنو، ودونو، د غم او خوښیو په وختونو کې یې وایي.
د لنډیو جوړونکي هم غالباً ښځې دي، زیاتې لنډۍ د زړه د ژورو تاثراتو، خواشینو او خپګان انعکاس دی.

له نیمایي نه زیاتې لنډۍ د غم، خپګان، دردېدلي زړه او د محرومیتونو ترجمانی کوي. زموږ په ټولنه کې لـــه بـــل هـــر چاڅخه زیات ښځې له خپلو حقونو څخه بې برخې دي. دغـــه لنـــډۍ د دوی د زړه اواز دی، د دوی د دردمـــن زړه زګېروی دی او د دوی د غم د خپلې سینې آه دی چې د نارینه و مخ د دوی تېریو، بدســـلوک او د نـــاوړه دودونـــو خواته اړوي.

**متلونه او لنډۍ**

ډېر ځله لنډۍ د متل پرځای استعمالېږي او دا هغه وخت وي چې لنډۍ له خپلې اصلي او لومړنۍ معنا څخه ووځـــي او بله کنایي معنا افاده کړي، لکه:

په پتاسو دې اموخته کړم

ماته د جوارو پولۍ خوند نه راکوینه

دا هغه وخت ویل کېږي چې څوک د چا له خوا په ښو ښو سوغاتونو لمانځل کېږي او بیا ښه سوغاتونه په بې ارزښـــتو سوغاتونو بدل شي.

ماخذ:

پښتو د ولسي ادب لارې

لیکوال: څېړنوال دوست محمد دوست شینواری

چاپ نېټه: ۱۲۸۵ لمریز کال

**شپږویشتم لوست**

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| ګڼه | د مطالبو سر لیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع** | رونیزه کیسه | |
| ۲ | **– د زده کړې پوهنیزې مهارتي ذهنیتي برخې** | ـ د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې ته لاس کړي.<br>ـ د متن په لوستلو سره به د لوست مطلب درک کړي.<br>ـ د یووالي او اتفاق په ګټو او ارزښتونو پوهیږي.<br>ـ د پښتو ژبې په زده کړې کې به هڅه وکړي.<br>– متن به سم او روان ولولي.<br>د یووالي او اتفاق په ارزښتونو به خبرې وکړای شي<br>– د متن د پای فعالیتونه به په سمه او فعاله توګه تر سره کړي | |
| ۳ | **د تدریس لارې** | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه (خبرې اترې) | |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندویه توکی** | د امکان په صورت کې د یووالي او اتفاق ځینې تصویرونه او انځورونه ټولګي ته راوړل. | |
| ۵ | **د ارزونې لارې او وسیلې** | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه د سوال او ځواب په توګه ارزونه او د یادداشت کتابچه | |
| ٦ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه** | سترې مه شې، حاضرې اخیستل او د کورنۍ دندې کتنه او اصلاح کول | ٦ دقیقې |
| ۷ | **د انګیزې رامنځ ته کول** | | ۴ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| – ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>– ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره پوره مرسته کوي او په کمزورو زده‌کوونکو باندې دې په وارولولي چې د هغوی د لوستلو مهارت ښه شي.<br>– ښوونکي د متن لغتونه پر تخته لیکي او د هرې ډلې په څو زده‌کوونکو یې معنا کوي او په څو نورو زده‌کوونکو باندې یې په جملو کې کاروي.<br>– ښوونکي له څو زده‌کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي په وړاندې دلوست په مطلب په خپله ژبه خبرې وکړي.<br>– ښوونکي له څو زده‌کوونکو څخه غواړي چې د لوست لنډیز په خپله ژبه ووایي.<br>– ښوونکي بیا په خپله د لوست په مطلب لنډې خبرې کوي.<br>– ښوونکی دې د متن موضوع د دیالوګ په توګه په زده‌کوونکو باندې تر سره کړي. ښوونکی دې پوره مرسته او لارښوونه وکړي.<br>– ښوونکی دې له متن څخه په خپله خوښه کورنۍ دنده وسپاري. | – زده‌کوونکي متن ته ګوري، متن ته ګوري او غوږ ورته نیسي.<br>– زده‌کوونکي په وارد لوستلو په مهارت کې برخه اخلي او د ستونزمنو کلمو سم تلفظ زده کوي.<br>– زده‌کوونکي د لغتونو په معنا کولو او د جملو په جوړولو کې ونډه اخلي.<br>– زده‌کوونکي په دغه فعالیت کې په علاقمندۍ سره ونډه اخلي.<br>– زده‌کوونکي د لوست لنډیز بیانوي.<br>– زده‌کوونکي ورته غوږ نیسي.<br>– زده‌کوونکي په دوه کسیزه توګه په دیالوګ کې برخه اخلي.<br>– زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده تر سره کوي. | ۳۵ دقیقې |

## ښوونکي ته اضافي معلومات

**يووالی او اتفاق**

يووالی او اتفاق د يوه هيواد دوګړو د مادي او معنوي پرمختګونو لامل ګرځي. کومو هيوادونه چې پــه ټولنيز،اقتــصادي، کلتوري، علمي، او نورو برخو کې پرمختګونه کړي او خلک يې د سوکاله او نيکمرغه ژوند خاوندان دي دا هم د يووالي او اتفاق له برکته دي.

زموږ هيواد افغانستان د هغو ټولو افغانانو ګډ کور دی چې په دې خاوره کې سره اوسيږي. زموږ د هيواد هر اوسيدونکی که نارينه دی او که ښځه، که زوړ دی او که ځوان او که د هر قوم او ملت څخه وي، د افغان په نوم يـــاديږي او د اســـلام د واحد دين پيرو دي.

زمونږ دهيواد ټول اوسيدونکي د ګډ تاريخ او ملي دوداو دستور لرونکي دي. ټول افغانان په خپل منځ کې ټولنيز، اقتصادي، فرهنګي علمي هنري او... اړيکې لري. دوی ټول لکه د يوې کورنۍ په توګه په خپل منځ کې سره د ورورولۍ، مينې، محبت او ملي يووالي په فضا کې ژوند کوي د يو بل په خوښۍ خوښ او په غم يې غمجن کيږي.

د ستونزو او اړتياوو په وخت کې سره لاسونه ورکوي او له يو بل سره د يو رښتينې افغان او مسلمان په توګـــه مرســـته او همکاری کوي.

يو مشهور متل دی چې وايي: له يوه لاسه ټک نه خيژي. څرګنده او ښکاره خبره ده چې که موږ يو لاس هر څو په يوه او بله خوا ووهو، غږ به ترې ونه خيژي. خو که بل لاس ورسره ووهو، نو بيا به ترې ټک ووځي. له پورتني متل څخه مطلب دادی که چيرې د يوه هيواد اوسيدونکي په خپل منځ کې سره يووالی ولري، نو دوی به د ژوند په هره برخه کې نيکمرغه واوسي همدغه شان که په ځانځانۍ او بې اتفاقۍ اخته وي، نه به سوکاله ژوند ووينې او نه به ابادي او پرمختګ.

د ټولنې او هيواد د پرمختګ او ابادۍ لپاره د يووالي او اتحاد شته والی ډير ضـــروري دي. د هيـــواد خپلـــواکي عـــزت، ايمانداري،سمسورتيا او پرمختګ په ملي يووالي کې دی. دا سپيڅلي هيلې او ارزوګانې يوازې او يوازې د علم او پوهې له لارې امکان لري او بس. موږ او تاسو ته ښايي د خپلو هيوادوالو د ملي يووالي لپاره هڅه او هاند وکړو.خپلو زده‌کوونکو ته د ملي يووالي په زړه پورې درسو نه ورکړو چې په راتلونکي کې دوی خپل هيواد او خلکو ته ګټور کار او خدمت وکړي.

ماخذ: غوره نثرونه، ګل پاچا الفت

# اووه ویشتم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | د مطالبو سر لیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع | اخترونه | |
| ۲ | – د زده کړې پوهنیزې، مهارتي ذهنیتي برخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– زده‌کوونکي به د اختر په دیني او مذهبي ارزښت پوه شي.<br>– په زده‌کوونکو کې به د اختر د ورځو په اړوند د مینې احساس پیدا شي.<br>– زده‌کوونکي به د متن په لوستلو او لیکلو پوه شي.<br>– په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونو د سر ته رسولو وړتیا ومومي.<br>– زده‌کوونکي به د نوو کلمو او لغاتو په معنا پوه او ددې وړتیا به پیدا کړي چې نوې کلمې په جملو کې وکاروي.<br>_ زده‌کوونکي به پر پښتو باندې د خبرو کولو اړتیا ومومي. | |
| ۳ | د تدریس لارې | لوستل،لیکل پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴ | د تدریس وسیلې او مرستندویه توکي | درسي کتاب، توره تخته تباشیر د ځینو مفردو او جمع کلمو لیکلي کارتونه. | |
| ۵ | د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، لیکلي ارزونه او د څارنې ارزونه. | |
| ٦ | د زده کړې او تدریس فعالیتونه | ستړي مه شي، حاضري او د کورنۍ دندې کتنه. | ٦ دقیقې |
| ۷ | د انګیزې رامنځ ته کول | – د لوست سر لیک (اخترونه) په توره تخته ولیکي.<br>– د پخوانی پوهې معلومول په دې توګه د لوست پیلول:<br>– ستاسو په فکر اختر څه ته وایي؟<br>– خلک په اختر کې څه کوي؟<br>– مسلمانان په کوم اختر کې قرباني کوي؟ | ۴ دقیقې |

| وخت | د زده‌کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | ـ زده‌کوونکی متن ته غوږ نیسي.<br>ـ زده‌کوونکي د ستونزمنو کلمو په اړوند پوښتنه کوي .<br><br><br>ـ زده‌کوونکي په ډلو کې فعاله ونډه اخلي او له سپارښتنې سره سم زده کړه کوي .<br><br>– زده‌کوونکي په وار په لوستلو کې برخه اخلي، نور زده‌کوونکي په پوره پاملرنې سره غوږ نیسي.<br><br>ـ زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې د اختر په اړه معلومات وړاندې کوي.<br><br>ـ زده‌کوونکی دوه ډلې کیږي او هره ډله له سپارښتنې سره ډیالوګ ترسره کوي.<br><br>ـ دوه دوه کسه زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او په خپلو منځونو کې د اختر په اړه مرکه کوي.<br>ـ زده‌کوونکي د متن وروستیو پوښتنو ته ځوابونه وایي. | ښوونکي متن په لوړ اواز لولي<br>ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br><br>ښوونکی زده‌کوونکي پر ډلو ویشي.<br>هرې ډلې ته دنده سپاري چې متن په خپلو منځو کې په مشوره سره ولولي، ښوونکي څارنه کوي.<br><br>ښوونکی درې زده‌کوونکي په وار سره د ټولګي مخې ته راغواړي او په هر یو د متن یوه برخه لولي.<br><br>ښوونکی سپارښتنه کوي چې دوی ډلې دې دوه دوه تنه د اختر د ورځو په باب د دیالوګ یا خبرو اترو په ډول نورو ته معلومات ورکړي، ښوونکی څارنه او مرسته کوي.<br><br>ښوونکی څو زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي سپارښتنه کوي چې زده‌کوونکي یوه جمله پر تخته ولیکي او د نیمګړتیا په صورت نور زده‌کوونکي یې تېروتنې اصلاح کوي.<br><br>ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښونه کوي چې د متن وروستیو پوښتنو ته خپله ځوابونه ووایي، ښوونکی مرسته او څارنه کوي. |
| | **د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:**<br>صدقه: یوه چا ته نقدې پیسې یا جنس د خدایﷻ په نوم ورکول، موخه او مطلب یې له یوه بې وزلي سره مرسته او د کومې بلا د له منځه وړلو او یا هم د کومې ستونزې حل وي، لکه چې وایي:<br>صدقه ردالبلا په دې معنا چې صدقه د بلا له مینځه وړونکي ده یعنې مطلب دا دی چې د صدقې ورکول بې وزلو خلکو ته د اللهﷻ په رحمت انسان له ځاني او مالي زیانونو څخه ژغوري. | |

**د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه**

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

د نړۍ ټول قومونه او ملتونه خپل تاریخي، مذهبي او فرهنگي ویاړونه او ورځې لري.

د اسلامي نړۍ لپاره د نورو ویاړونو تر څنگ د یوه کال په اوږدو کې دوه اخترونه ( لوی او کوچنی) اختر د خوشحالۍ ورځې دي.

لکه څنگه چې ټولو مسلمانانو ته پوره پوره پته ده چې روژه د اسلام د سپیڅلي دین له ارکانو یا بنسټونو څخه یو بنسټ دی. په کال کې د یوې میاشتې روژه نیول د روژې په مبارکه میاشت کې پر ټولو مسلمانانو فرض ده. د روژې نیـــول ډېرې دنیوي او اخروي ښیگڼې او فضلیتونه لري. په روژه کې قران کریم نازل شوی دی.

په روژه کې د قدر شپه شتون لري، په روژه کې د اسلام ستر پیغمبر حضرت محمدﷺ معراج ته تللی او داسې نورې.

په پورتنیو او بې شمیره نورو ښیگڼو سربیره چې د روژې په مبارکه میاشت کې لوی خدایﷻ ټولو مسلمانانوته اجر او ثواب ورکوي، د روژې مبارکې میاشتې په پای کې مسلمانانو ته د لوی خدایﷻ له خوا میلمستیا ده. له دې املـــه د کوچني اختر ورځې هم د لوی اختر په شان سپیڅلې او د درناوي وړ دي. همدارنگه د لوی اختر ورځې هم د اسلامي نړۍ لپاره سپیڅلې او مقدسې ورځې دي. د لوی اختر په ورځو کې اسلامي نړۍ د اسلام پنځم رکن یا بنسټ (حج) تر سره کوي. د ذوالحجة الحرام نهمه نېټه د عرفې ورځ ده. وروسې درې ورځې د لوی اختر او د حج فریضې د ادا کولو مبارکې ورځې دي، د حج په مراسمو کې د نړۍ ټول مسلمانان په مکهٔ معظمه کې سره راټولیږي. حاجیـــان د حـــج د اداکولو په وخت کې له یوبل سره گوري، حاجیان د نړۍ د مسلمانانو له ستونزو څخه خبریږي.

لکه چې ورته اشاره وشوه د نړۍ ټول مسلمانان چې د نړۍ په هر ځای کې ژوند کوي، که په هره ژبه خبرې کوي له خپل دود دستور سره د لوی او کوچني اختر ورځې لمانځي، درناوی یې کوي او پرې ویاړي. په اخترونو کې خپلوان، دوستان او حتی دښمنان د یو بل سره کورته ځي، د اختر مبارکي کوي. په اخترونو کې خلک نوي کالي پر تن کوي په ځینو سیمو کې پیغلې او ځوانان لاسونه په نکریزو سره کوي.

میلو ځایونو ته ځي، د روژې او کوچني اختر یوه ځانگړنه داده چې پر شرایطو برابر مسلمانانو، خوارانو او بې وزلو ته د فطر صدقه ورکوي. په لوی اختر کې شتمن مسلمانان قرباني کوي چې د ابراهیمؑ او اسمعیلؑ له وخته واجـــب شوي ده. مسلمانان د قربانۍ غوښې پر خوارانو او بې وزلو ویشي. که خبره رالنډه کړو، نو ویلای شو چې د اخترونـــو ورځې د مسلمانانو لپاره د ارزښتونو او ثوابونو ډکې ورځې دي، د نړۍ ټول مسلمانان په خوښۍ او خوشحالۍ سره دا ورځې د خپل دود، رسم او راوج سره سمې لمانځي

## اته ویشتم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | د مطالبو سر لیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع** | د کال وروستی لوست | |
| ۲ | **– د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي موخې** | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي<br>_ د متن مطلب به درک کړي.<br>متن به سم ولولي.<br>_ د متن په مطلب به خبرې وکړي او پوښتنو ته به په شفاهي ډول ځوابونه ووايي.<br>_ د لوست د پای فعالیتونه به په ډله ییزه او یوازې توګه تر سره کړي.<br>_ دوی به په یوازې توګه د زوړ کال د زده کړو په اړه خبرې وکړای شي. | |
| ۳ | **د تدریس لارې** | لوستل،لیکل، خبري اترې، سوال او ځواب | |
| ۴ | **د تدریس د وسیلې او مرستندویه توکې** | د لیکلو کلمو کارتونه. | |
| ۵ | **د ارزونې لارې او وسیلې** | شفاهي ارزونه، دسوال او ځواب په ډول ارزونه، لیکي ارزونه. | |
| ٦ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه** | سترې مه شي، د حاضرې اخیستل او په بیلابیلو بڼو د کورنۍ دندې کتنه. | ٦ دقیقې |
| ۷ | **د انګیزې رامنځ ته کول** | – ښاغلی ښوونکی کولای شي لاندې هڅوونکي پوښتنې د لوست د ښې پوهاوۍ او کنجکاوۍ په خاطر په زده‌کوونکو په شفاهي او یا تحریري توګه لاندې پوښتنې ترسره کړي.<br>ستاسو تعلیمي کال کله پای ته رسیږي؟<br>له مورنۍ ژبې پرته د بلې ژبې زده کړه څه ګټه لري؟ | ۴ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ښاغلی ښوونکی دې متن په مناسب او روان ډول ولولي او د ستونزمنو الفاظو سم تلفظ ته دې پوره دقت وکړي.<br>– ښوونکی دې متن په څو کمزورو زده‌کوونکو چې په لوستلو کې ستونزه لري، وار په وار ولولي او د ستونزمنو الفاظو په سم تلفظ کې دې ورسره پوره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.<br>– له څو زده‌کوونکو څخه دې وغواړي چې په وار سره د ټولګي په مخکې د زوړ کال د زده کړو په اړه خپل معلومات نورو ته وړاندې کړي.<br><br>– ښوونکی دې د لوست په اړوند په دوه کسیزه توګه د ټولګي په وړاندې په زده‌کوونکو باندې خبري اترې تر سره کړي چې زده‌کوونکي د سمو خبرو کولو مهارت باندې وتوانیږي او وکولای شي چې په هرې موضوع باندې په پښتو ژبه خبرې وکړي.<br>– ښوونکی دې زده‌کوونکي په څو ډلو وویشي او ورته دې لارښوونه وکړي چې د هري ډلي زده‌کوونکي دې په یوازې توګه د اخترونو په اړه څو څو جملې له یادو ولیکي. ښوونکی دې د زده‌کوونکو په کتارونو بانـدې ګرځي راګرځي او د دوی د کار څارنه وکړي.<br>– ښوونکي دې بیا د لوست په اصلي مطلب باندې پوره څرګندونې وکړي او زده‌کوونکي دې د پښتو ژبې زده کړې ته نور هم وهڅوي.<br>ښوونکی دې له لوست څخه زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده وسپاري | – زده‌کوونکي دي متن ته په پوره ځیرتیا سره وګوري او د ښوونکي لوستلو ته دې په دقت غوږ ونیسي.<br>ـ زده‌کوونکي په وار سره متن لولي او د ستونزمنو الفاظو سم تلفظ ته ځیر کیږي.<br><br>ـ زده‌کوونکي په وار سره د زوړ کال د زده کړو په اړه خبرې کوي.<br><br>ـ زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم نومـوړې فعالیت ترسره کوي.<br><br>ـ زده‌کوونکي د تېرو ورځو، په تېره بیا د لومړیو ورځو، په پرتله په ښه ډول په پښتو خبرې کولای شي. د پښتو کلمو زیر مه یې باید زیاته شوي وي او په خبرو کولو کې ډېره ستونزه ونه لري.<br><br>زده‌کوونکي د ښوونکي له څرګندونو څخه ګټه کوي او د پښتو ژبې د لاښې زده کړې لپاره چې وکولای شي په پښتو ژبه روانـې خبـرې وکړي، متوجه کیږي.<br><br>زده‌کوونکي کورنۍ دنده په سمه توګه ترسره کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د ستونزو برخو روښانول**

ښوونه (تعلیم)

لاربښونه، لاربښودنه

پوهنتون:جمع یې (پوهنتونونه) د علمي او لوړو زده کړو هغه موسسه چې په هغه ځای کې څو پوهنځي موجود وي او د دوولسم ټولګي وروسته زده‌کوونکي ښوونه او لوړې زده کړې پکې تر سره کړي.

**د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه**

**ښوونکي ته اضافي معلومات**

د دويمې ژبې (پښتو) زده کول په عين حال کې چې زموږ د ګران هيواد رسمي ژبه ده، د مورنۍ ژبې د ودې او پرمختيا او له هېوادوالو سره د ارتباطي مهارتونو د ودې او پرمختيا سبب کيږي او له نورو فرهنګونو، دودونو سره اشنايي پيدا کوي.

ددې لپاره چې په زده‌کوونکو باندې د يو شمير موضوعګانو په اړه خبرې اترې ترسره شي، دا خبري ښايي په يوازې توګه، په دوه کسيزه توګه تر سره شي، څرنګه چې زده‌کوونکي د يو تعليمي کال په بهير کې د پښتو ژبې زده کړه په بيلابيلو موضوع ګانو او درسونو کې ترسره کوي او په دې توانيږي چې نورو ته خپل ځان وروپيژني، خپله کورنۍ وروپيژني، ډاکټر ته د خپلې ناروغۍ په اړه څه وويلای شي، له درملتون څخه درمل واخيستلای شي او په پلورنځيو کې د اړتيا وړ شيان ترلاسه کړای شي، د خوښيو په مراسمو کې له نورو سره بلدتيا پيدا کړي او له نورو سره خبرې اترې وکړای شي او نور... .

ژبه يوازې په ټولګي کې نه زده کيږي، بلکې له ټولګي څخه بهر هم زده کيږي، د دويمي ژبې (پښتو) د زده کړې لپاره بايد اغيزمن پروګرامونه پيل او ترسره شي

زده‌کوونکي زيات وخت ته اړتيا لري چې دوېمه ژبه د خبرو کولو، اوريدلو، لوستلو او ليکلو له لارې په سمه توګه زده کړي، چې وکولای شي رواني خبرې وکړي او د خپلو هيوادوالو د ژبې، فرهنګ او دودونو سره اشنايي پيدا کړي او په دې وتوانيږي چې د خپل هيواد ملي ارزښتونو په اړه خبرې وکړي او نورو ته خپل معلومات وړاندې کړي.

د ژبې د زده کړې اغيزمن پروګرامونه د ژبې په مهارتونو، پوهې، مطالعې او د خلکو په فرهنګ پورې چې په هغې خبرې کوي، اړه لري.